# کندهار

اتم کال

دریمه او څلورمه ګڼه

۱۳۸۸ ش

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه




قرآني رياضي
هرومرو مطالعه کړئ

پاني پت: د افغانانو هلاکت

هر نفس د مرګ څکه کوي

سل نړيوال شخصيتونه



د شپيتو بړيخو ورځ په ورځ کمی دئ

استاد بېنوا:

# مسافر

د فرېب او دروه سره نا آشنا وم، مګر او چل مې زړه ته لار نه درلوده، درواغ مې نه پېژندل، د ژوند د لويې لارې مسافر وم.

له پرېشانه خوبه راپاڅېدم، قافله ډېره پر مخ تللې وه، يوازې زه وم چې د لاربنوونکي په انتظار مې لويې لارې کتلې.

ډېر راغلل، تېر سول، مګر يوه هم د زړه سوي په سترګو راته ونه کتل.

ځينو به د ګوتو په اشارو لار راښودله، خو د ګوتو د اشارو لارې ډېرې اوږدې وې.

ځينو د دې له پاره چې ځانونه په ما وساتي، زه به يې د ځان سره روان کړم، خو چې خطر به تېر سو، نو بيرته به يې زه پر لويه لار پرېښودلم، دوی به ولاړه.

همداسې د لاربنوونکي په انتظار د ژوندون په لويه لار کې ولاړ وم.

څو چې زما ګران ملګريه! ته راغلې، زه دې تر لاس ونيولم.

زه هم په پاک زړه په تا پسې روان سوم، او د لارې موندلو په اميد مې ستا لمنه ټينګه کړه، هري خوا ته چې تلې در پسې تلم، او تا هم ما ته د لار موندلو ډاډ راکاوه.

که څه هم ستا لار له ټولو نه بېله وه، او ځانته رنګ يې درلود، خو تګ ډېر وروورو و. کله چې به ګړندي سپاره تر موږ تېرېدل نو ته به راته موسکی سوې چې څه پروا نه لري.

ناڅاپه موسمي توره اوريځ پيدا سوه، باران او ږلۍ په اورېدو شروع وکړه، آسمان او ځمکه پر خروښ راغلل، لارې ګډې وډې سولې.

خو زه په زړه ډاډه وم، چې تا غوندي لاربنوونکی ملګری لرم، او تا ته مې سترګې وې چې د زمانې په دې توره دربيله کې به لار راوښيې.

مګر په هممغه حال کې تا په ډېرې حيرانتيا ما ته مخ راواړاوه او له ما څخه دې پوښتنه وکړه چې:

اې مسافره! لار راوښيه، لار کمهده؟

هغه وخت نو زه پوه سوم، چې زما د ژوند د لارې لاربنوونکی يوازې زه يم، او بايد زه پخپله د خپل ژوندون لار وټاکم او خپله لاربنوونه پخپله وکړم[1].

---

[1] هديهٔ انيس، ۱۸ مخ، د ۱۳۳۸ ش کال چاپ.

بسم الله الرحمن الرحیم






# کندهار

علمي، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله

د امتياز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رياست

دريمه دوره

اتم کال، دريمه - څلرمه، پرله پسې ۴۸ - ۴۹ ګڼه

زمرى - لړم (۱۳۸۸ ش)



پته

علامه حبيبي واټ

د اطلاعاتو او کلتور رياست

د کندهار مجلې دفتر

ټيليفون: ۳۰۰۱۴۴۰

**څو ضروري يادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زيانمني ليکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني ليکني معيار سره سم د ليکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي ليکني بيرته نه ورکول کيږي.
- هره ليکنه د ليکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هيواد او دباندي کي د مجلې بيې**

هيواد: ۲۰ - افغاني

پاکستان: ۳۰ - کلداري

**کلني ګډون**

هيواد: ۱۲۰ - افغاني

پاکستان: ۲۰۰ - کلداري

نور هيوادونه: ۸۰ - امريکايي ډالره

# فهرست

# اروابناد ریشاء هم وکوچېد

ښه نوم او پخپلو خلکو او خپله مېنه کي په ښېګڼه او ویاړمنه توګه ژوند کول د یوه داسي څراغ حیثیت لري، چي روڼا یې تل تیته او ګټه یې عامه، پراخه او ژوره وي. زموږ ټولنه د دغه ډول ویاړمنو مېړنیو څخه خالي نه ده، د تاریخ په اوږدو کي زموږ د ولسونو هر اړخ په هغوی ځلانده او روښانه پاته سوی دئ. همدا لړی تر ننه راغځېدلې او د ویاړنو همدا بګړی زموږ د خلکو پر سرونو په هسکه توګه پرته ده.

د تېرو او ننني روښانه ذهنونه او ژور خیالونه دا داډ راکوي، چي د ویاړنو دا ډګر به تل د دغسي ښېګڼو او همدا ډول ویاړمنو څېرو څخه ډک وي. که داسي نه وای اوس به دا ولس په بېلابېلو اړخونو او فرهنګي ساحو کي د نیستیو سره مخ وای. خبره راڅخه اوږده سوه، موږ څو ورځي دمخه د دې سیمي د یوه محور لیکوال اروابناد عبدالهادي ریشاء د مړیني څخه د خپرې خواشینۍ پر تغر ناست وو، اروابناد ریشاء نه یوازي دا چي د هیواد او ولس په بدو ورځو پسې د قلم څوکه او د ذهن سیوری اچولی و، بلکي همدغو خواشینیو د هغه صحت تر هغه کچي کښېکښی، څو د مرګي تر کومي یې ورساوه.

اروابناد ریشاء د ژوندانه تر وروستیو ګړیو خپل خلک په قلمي پېژوینو ونازول او د نازېدو لاس یې تر ډېره د دې اړخ پر لور راکوږ و، د دوی د وفا دغه پاک احساس بالاخره د دوی د جسد سره وفا وکړه او د دې سیمي او شرق د پاخه لیکوال، ژبپوه، شاعر، څېړونکي، مؤرخ او ادیب اروابناد اکاډمسین پوهاند عبدالشکور رشاد د سپېڅلي ډوی تر څنګ یې ابدي خوب ته ډډه ورکړه. روح دې ښاده او د دوی د لیکنو سیوری دې تل زموږ د خلکو پر زړونو او دماغونو خپور وي.

اروابناد ریشاء د اروابناد لوی استاد پوهاند حبیبي، اروابناد استاد بېنوا، اروابناد اکاډمیسین رشاد، اروابناد استاد الفت، اروابناد استاد خادم، اروابناد کاندید اکاډمیسین عطایي، اروابناد مولوي او نورو په لسګونو دا ډول قلمي او فکري مېړنیانو لار خپله کړه. لکه چي ریشاء د هغوی ځای نیولی او د هغوی تشه یې ډکه کړې وه، دا ولس داسي بچي لري چي هغوی بیا د اروابناد ریشاء تشه ډکه او د دوی د قلم څخه پاته لړی بدایه او تر خلکو پوري یې ورسوي. لوی خدای (ج) دې پر ریشاء او د ده غوندي پر ټولو مېړنیانو ورحمېږي. تل دې د دوی لاره روښانه او د فکر او ذهن لاسته راوړني دې تلپاته وي.

آمین

اداره

# پاني پت

# د افغانانو هلاکت !

بسم الله الرحمن الرحیم

د پاني پت په دا میدان
شـــه د وینو رود روان
عجب ورځ وه د قیامت
په مـــیدان د پاني پت
(حافظ مرغُزي)

یادوَنه :

**دا زما لومړنۍ څېړنه ده، چې د پورتنیو دوو بیتونو څخه پرته مي د هیڅ کومي داخلي او افغاني منبع څخه استفاده نه ده پکښې کړې، بلکي ټول مأخذونه بهرني په تېره بیا پخپله هندي آثار دي، تر څو د پاني پت د جګړو په هکله د افغاني او غیر افغاني اخځونو پرتله او مقابله وسي او هم په دې توګه د تاریخ قضاوت مشاهده کړو (ن. صمد).**

داسي افغان خصوصاً پښتون به نه وي، چي د (پاني پت) نوم یې نه وي اورېدلي. دا ځکه چي د پاني پت سره لړ او



لیکوال : ډاکټر نثار احمد صمد

ډېر د هر افغان ماضي تړلې ده.

پاني پت د افغاني تاریخ مهم او د پېښو څخه ډک فصل جوړوي. دغه ځای د هند او افغانستان آینده ورتاکلې او د دواړو هېوادونو برخلیک یې تعین کړی دئ. پاني پت د سلګونو زرو افغانانو خصوصاً پښتنو ککری، خوړلي دي. افغانانو د خپلو څو ملیونو لیټره وینو په نذرانه سره دغه پراخې خاوري ته بالکل سور رنګ وربخښلی دئ. د پاني پت په ارت او پراخ میدان کي د افغاني وینو فوارې جاري سوي او ستري خوني څپې یې ایجاد کړي دي.

په بل عبارت، پاني پت د لر او بر، ځایي او پردېسو، پُخلا او خپه ټولو پښتنو د سرونو مېچن ثابته سوې، چي هغوی یخپلو وړیا سربښندونو سره د بل تاریخ ګټلی خو ځان یې پکښې بایللی دئ. بل یې آباد کړی خو ځان یې برباد کړی دئ، بل یې ګټمن کړی خو ځان یې زیانمن کړی دئ، بل یې درولی خو ځان یې اچولی دئ، بل یې په مراد کړی خو ځان یې نامراد کړی دئ. لنډه دا چي بل یې پاچا کړی خو ځان یې ګدا کړی دئ. بې ربطه به نه وي که ووایو، چي پاني پت د افغاني ځلمیانو قتل ګاه ثابته سوې ده.

په هر حال، دا زما لوی آرمان و، چي د افغانانو د ککریو دغه عظیمه قربانګاه له نږدې ووینم. زه په هند کي د ۱۹۸۸ څخه د ۱۹۹۹ تر پایه ۱۲ کاله اوسېدلی یم، څو چي په ۱۹۹۳ کي مي د دغه قتل ګاه لیدنه په نصیب سوه. زما دوه هندي ملګري (چي دواړه هندوان وو) او د پاني پت اوسېدونکي ول، دغه ځای ته بوتلم او په هره برخه کي یې معلومات او زما پوښتنو ته ځوابونه راکول. کله چي د ستر ټولواک سلطان ابراهیم لودي د قبر او هم د اعلیحضرت احمدشاه بابا د خیمې څه نا څه ۱۰۰ - ۲۰۰ متری ته ورنږدې سوم نو بوټونه مي وکښل او لڅې پښې روان سوم. ځکه زما تر پښو لاندي زما د نیکونو د وینو حجرات پراته وو او د خاوري په ذره ذره کي یې د هغوی د ماتو زړونو مات ارمانونه ښخ وو او ما نه غوښته چي د هغوی ارواحونه په عذاب کړم. زما سره د دې خاورو له منځه د هغوي نامرادو هیلو خبري کولې او په کابل کي یې د خپلو بې وفا اخلافو د خپل منځي روانو جنګونو د بندښت پیغام راکاوه (چي بېلابېلو جنګسالارانو هغه مهال جاري ساتلي وو).

کوربه دوستانو مسلسل منع کولم، چي ګرمي ده او وخت هم د ماپښین درې بجې وې، خو ما په اشاره سره منفي ځواب ورکاوه او د خپلو سل زره شهیدو نیکه ګانو ارواحو ته مي دعاوي کولې او ټول بدن مي رېږدېدی. نه مي ګرمي احساسوله او نه هم د خپلو پښو سوځېدل، حال دا چي تودوخه د سانتي ګراد ۳۸ درجې وه.

ما د پاني پت دواړي ستري جګړې په ذهن کي انځور کړې او ټولي هغه صحنې او مانورې مي یوه یوه مخې ته راتله چي د سلطان ابراهیم لودي او احمد شاه بابا قوماندانانو او پوځیانو به عملي کولې. دواړي جګړې مي له نږدې لیدلې

چي پوره بيان يې يو عليحده مبحث غواړي.

ملګرو مي د سوچونو او خيالونو لړۍ راقطع کړه او مجبور يې کړم چي بيرته ستانه سو او د بل وخت راتګ قول يې راسره وکړ. کله چي کور ته راغلم څه باندي يوه مياشت روحاً پرېشان او نا آرام وم او د پښو د سوځېدلو منفي تأثيرات مي آن تر ننه هم راسره پاته دي.

په هر حال. پاني پت عظيم ترينه پښتني سرمايه وخوړله، چي هغه پښتني نفوس او بشري قوت و. پاني پت په سلګونو زره مېرمني کونډې، ميندي بوري او خوندي وراري کړې. پاني پت د افغانستان او هندوستان پنځوس سلنه پښتانه په غم ولړل او د هغوی کورونه يې خراب کړل.

هو! پانی پت چي د افغانانو قتل ګاه ثابته سوې. د ډيلي د شمال لويديځ په ۸۵ کيلومترۍ. کي د جمنا د سيند پر څنډه واقع دئ. پاني پت يو افسانوي او لرغونی ښارګوټی دئ، خو نن د اوبدلو او نساجي د صنعت له مخي ډېر شهرت لري. پاني پت يو افسانوي نوم، يو افسانوي اهميت او يو افسانوي دريځ لري.

اوسنی پاني پت د (کوروک شيترا) سيمي ته څرمه پروت دئ. د ميلاد څخه تقريباً دوه زره کاله پخوا د (مها بهارت) لرغونی لوی افسانوي جنګ همدلته پېښ سوی دئ. د پاني پت لرغونی نوم د مهابهارت په زمانه کي (پاني پرشتا) يعني يو د پنځو ښارونو څخه و. هغه مهال د مهابهارت اتل (ارجون) د دې ښار اساس ايښی دئ. د پاني پرشتا يعني پنځو ښارونو د جملې څخه د اوسني پاني پت نوم (پن پت) و، چي د يوې لرغوني قبيلې نوم و او هغوی همدلته اوسېدل. دا نوم د تاريخ په اوږدو کي سوکه سوکه په (پاني پت) سره واوښت. دا يو د هغو پنځو ښارونو څخه و. چي د (دراويدي) والو (يعني پن پت والو) څخه (پنداوا) والو وزرونو غوښت او ځکه نو د دې دوو لرغونو قبيلو تر منځ بربادوونکی جنګ همدلته پېښ سو.

په هر صورت، نن د ډيلي څخه مخ پر شمال يوه لويه لاره (های وې) غځېدلې ده. چي (شېرشاه سوري) سړک نومېږي. پر دغه لويه لار پسله پنځه اتيا کيلومتره واټن څخه د پاني پت ښار رارسېږي، چي د (هريانه) ايالت يوه ولسوالي ده. اوسنی پاني پت د لاسي اوبدلو او نساجي صنعت له مخي ښه شهرت لري او مصنوعات يې ډېرو اروپايي هېوادو، کاناډا او امريکا ته لېږل کېږي او هم د هندي پوځ لپاره لباس او يونيفورم اکثراً همدلته جوړېږي. خو د دې څخه علاوه دلته نن د برقي سامان آلاتو، خښتو او ښيښه ييزو شيانو صنعت هم ښه رونق لري.

اوسنی پاني پت (۱۲۶۸) کيلومتره مربع ساحه او څه باندي يو مليون وګړي لري. اقليم يې تود او مرطوب دئ. په دوبي کي يې تودوخه د سانتي ګراډ ۴۴ درجې او په ژمي کي مثبت څلور درجې وي. د پاني پت د اوسېدونکو د سواد



د بو علي شاه قلندر زيارت

اندازه (۷۵٪) ده، چې دا د ټول هېواد (یعني ۷۰٪ ) څخه لوړه ده. پاني پت د نني صنعت او مدنیت د لړلو سره سره بیا هم د خپل تاریخي اهمیت څخه ښه برخمن او مستغني دئ.

د پاني پت پر زاړه ښار یوه لویه کلا را تاو سوې ده، چې ۱۵ غټې دروازې لري او هره یوه پر مختلفو خواوو خلاصېږي. په پاني پت کې یو ډېر مشهور زیارت د «بو علي شاه قلندر» دئ، چې د (خضر خان) په درګاه سره شهرت لري. بو علي شاه قلندر د ۱۴۰۰ میلادي کال په شاوخوا کې (د قطب الدین ایبک د امارت پر مهال) همدلته زوکېدلی، چې یو لوی صوفي و. اصلي نوم یې شیخ شرف الدین او د پلار نوم یې شیخ فخرالدین و، چې په ۶۰۰ هجري کال کې د عراق څخه پاني پت ته راغلی او سلسله یې امام ابوحنیفه رحمة الله علیه ته رسېږي . په بوعلي قلندر پوري یوه افسانه جوړه سوې، چې وایي ده د خلکو په غوښتنه د پاني پت ټول الوتونکي وشړل، خو څه موده وروسته خلکو بیرته شکایت وکړ او ده هم تر پخوا څو چنده زیات الوتونکي



د خواجه شمس الدین مسجد، پاني پت



د سلطان ابراهیم لودي قبر په پاني پت کې

راوستل. دغسې له افراطه ډکې نورې قصې هم ورپورې جوړې سوې دي. د ده زيارت ته د هرې عقيدې خلک (مسلمانان، هندوان، عيسويان او سيکان) ورځي او هره پنجشنبه يې دربار پرانيستی وي.

د پاني پت نور مشهور صوفيان خواجه شمس الدين ترک او شيخ جلال الدين دي، چې د سلطنت څخه يې آزادانه ژوند کاوه او د هر مذهب د احترام وړ شخصيتونه ول.

د پاني پت مشهور اديب او لوی شخصيت (الطاف حسين حالي) دئ، چې نوموړ شاعر او په ۱۸۳۷ کې همدلته زوکړدلی دئ. نوموړی په ۱۹۱۴ کې وفات سو او د بوعلي شاه قلندر په درګاه کې ښخ دئ. (حالي) د اردو ژبې تکړه شاعر او د ميرزا غالب وروستی شاګرد دئ. د ده ديوان (مسدس حالي) نومېږي، چې شعرونه يې ډېر شهرت او محبوبيت لري.

خو د پاني پت تر ټولو مهم، اغېزمن



کابلي باغ مسجد، پاني پت چې بابر جوړ کړ.

او له حسرته ډک زیارت هماغه د ستر ټولواک سلطان ابراهیم لودي قبر دئ، چي پر یوه نسبتاً لوړه برنډه باندي واقع دئ او پوښلی نه بلکي سرخلاصی دئ. د شېرشاه سوري د ژوند آخري آرمان همدا و، چي ویې نه سو کړای د سلطان ابراهیم لودي پر قبر یوه لویه او هسکه ګنبده ودانه کړي. خو وروسته انګرېزانو د ده مقبره په ۱۸۶۶ کي له سره جوړه کړه، چي په اردو ژبه یې د ده د ماتي ماجرا ورباندي لیکلې ده. سلطان ابراهیم لودي د خپل سلطنت پر مهال د ډیلي په (لودي باغ) کي د ځان لپاره یوه پرتمینه ګنبده جوړه کړې وه، چي تر مړیني وروسته به همدلته ښخېدی. خو هغه خبر نه و، چي په پاني پت کي به د جنګسالار بابر له خوا په شهادت رسېږي او همالته به ښخېږي. د ډیلي په لودي باغ کي هماغه لویه او هسکه ګنبده همدا نن هم هماغسي خالي ولاړه ده، حال دا چي د ډیلي سلطان په پاني پت کي پر سپین میدان د خپلو لسګونو زرو پښتنو شهیدانو په منځ کي ښخ دئ.

بابر پر ابراهیم لودي تر بریالیتوب وروسته د یادګار په توګه همدلته یو مسجد هم جوړ کړ، چي نوم یې (کابلي باغ) پر کښېښود، چي د خپلي مېرمني (کابلي بېګم) د نوم څخه مشتق و. دغه جومات همدا نن هم هماغسي پاته دئ او



د سلطان ابراهیم لودي ګنبده په نوي ډیلي کي چي تشه ولاړه ده.

ډېر خلک یې لیدو ته ورځي.

په هر حال، پاني پت درې لویې جګړې لیدلي یعني د درو خورا سترو جګړو کوربه پاته سوی دئ. دغو درو واړو جګړو د درو لویو قومونو، درو لویو قوتونو او درو لویو هېوادونو برخلیک

وربدل کړی دئ، چي وروسته به یې وڅیړو. دا درې جګړې په دې ډول دي:

لومړنۍ جګړه د ۱۵۲۶ میلادي کال د اپریل پر ۲۱ د ډیلي د سلطان (ابراهیم لودي) او مغولي جنګسالار (ظهیرالدین بابر) تر منځ پېښه سوې ده.

دوهمه جګړه د ۱۵۵۶ د نومبر پر پنځمه د شاه عالم د هندو قوماندان (هیمو) او مغولي واکمن (جلال الدین اکبر) تر منځ سوې ده.

درېیمه جګړه د ۱۷۶۱ د جنورۍ پر ۱۴ د اعلیحضرت احمد شاه بابا او مرهټه ائتلاف تر منځ پیښه سوې ده.

تاریخپوهان په دې رایه دي، چي د پاني پت لومړۍ جګړې په هند کي د پښتنو برخلیک د تل لپاره بدل کړ، دوهمي جګړې د هندوانو تسلط د څلورو پیړیو لپاره بدل کړ، او بالاخره درېیمي جګړې هم په مجموع کي د ټول هندوستان برخلیک بدل کړ او هغه یې د ۱۵۰ کالو لپاره د برتانوي استعمار منګلو ته برابر کړ. د هند لومړنی صدراعظم جواهر لال نهرو لیکي، چي:

"د هندوستان برخلیک څو څو واره د پاني پت پر میدان فیصله او ټاکل سوی دئ".

ښه به دا وي، چي درې واړه جګړې وشنو، خو لومړنۍ او درېیمه به یوڅه مفصلاً وڅېړو دا ځکه چي هغه د افغانانو د خواریو او قربانیو سره نېغ تړاو لري.

## د پاني پت لومړۍ جګړه:

د پاني پت اول جنګ ۴۸۳ کاله پخوا (یعني د ۱۵۲۶ د اپریل پر ۲۱) پېښ سوی دئ. دا جګړه د ډیلي د سلطان (ابراهیم لودي) او په کابل کي د منځنۍ آسیا څخه د راتښتېدلي مغول پاچا (ظهیرالدین بابر) تر منځ وسوه. د ډیلي سلطنت چي مخ



د پاني پت لومړۍ جګړه

پر څوړ او کمزوری روان و، په دې جګړه
سره عملاً پای ته ورسېد او هندوستان
مغولو ته په لاس ورغی.

د بابر نوم ظهیرالدین دئ، خو د بابر
معنا (ببر یا پړانګ) ده. د ده ټول ژوند په
جګړو کې تېر سوی دئ. بابر د پلار له خوا
ګوډ تېمور او د مور له خوا چنګیزخان ته
رسېږي. پلار یې (شیخ عمر میرزا) د
فرغانې مشر و. بابر د ۱۱ کالو و، چې د
پلار پر ځای کښېناست. په ۱۴۹۷ کې یې
د عمر په ۱۴ کلنۍ کې سمرقند د خپل اکا
تر مړیني وروسته ونیو. خو وروسته یې
ورور دواړه ځایونه (فرغانه او سمرقند)
ځني ونیول. ده بیا هغه ونیول او بیرته یې د
لاسه ورکړل څو چې بالاخره غرونو ته
وتښتېد او هلته د فراري په توګه د
چوپانانو سره اوسېدی. وروسته یې څه
کسان پیدا کړل او د هندوکش څخه
راواوښت څو چې په ۱۵۰۴ کې یې کابل
ونیو او د فرغانې څخه تر شړل کېدو
وروسته آن تر هغه لا غټ واکمن سو (خو
په بله سیمه کې). کله چې په کابل کې د
پاچا په توګه ټینګ سو، نو بیرته مخ پر
سمرقند ورغی او د ایراني پاچا (شاه
اسمعیل) په مرسته یې هغه ونیو او شیعه
مذهب یې ومانه. وروسته یې بخارا او
خراسان هم د اسمعیل په کومک ونیول
(۱۵۱۱). مګر د ازبکو مشر (عبیدالله
خان) د شاه اسمعیل تر وتلو وروسته برید
پر وکړ او دا ټول متصرفات یې بیرته ځني
ونیول، څو چې بابر هم کابل ته راستون سو
(۱۵۱۳) او صرف بدخشان ورپاته سو،
چې مرکز یې کندز و. د دې نفرت علت د ده
له خوا د شیعه مذهب قبلول و (چې
وروسته بیرته سُني سو).

بابر کرار پاته نه سو او دا چې د
منځنۍ آسیا څخه مایوس او نهیلی سو.
نو خپلو جاه طلبیو ته یې مخ د هند پر خوا
ادامه ورکړه تر څو د (پاچا) په عوض کې
(امپراتور) سوی واي.

بابر د هند پر لور په خپلو جاه طلبیو
کې هغو جنګي تاکتیکونو وهڅاوه، چې د
ازبکانو، ترکانو او پارسیانو څخه یې زده
کړي وو. د ازبکو څخه یې پر دښمن باندې
په یو وخت کې د مخ او شا له خوا د حملو
چمونه او فنون زده کړل. د پارسیانو څخه
یې د باروتو استعمال او د هغه طریقې زده
کړې. د ترکانو څخه یې د خوځنده سپاره
نظام فن او تاکتیکونه زده کړل. دا چې دوه
تکړه او مجرب توپچیان (استاد علي او
استاد مصطفی) یې لرل، نو دې کار نور
هم تلولی او بېړنی کړ. بابر چې کله خپل
پوځ په دغو تجهیزاتو او تاکتیکونو سره
ښه سمبال کړ، نو په ۱۵۱۸ کې د هند نیولو
ته متوجه سو. په هند کې داخلي نفاق او
شخړو هغه نور هم تشویق او پسې کامیاب
کړ. د ډیلي سلطنت تر پخوا ډیر کمزوره او
کوچنی (محدود) سوی و. سلطان ابراهیم
لودي تر بل هر وخت ډېر تجرید او د
مخالفتونو په غېږ ورغلی و. ده خپل تکړه
خوانین او مخور خوابدي کړي وو.
پنجاب چې والي یې (دولت خان لودي)
و، عملاً مستقل خو په نوم د ډیلي تابع و.
په لوېدیځ کې د سند او ملتان والیان او په

ختیځ کې جیپور او بنګال هم همدغسې وو. د راجپوت کوچنیو حکومتونو د (میواړ) د راناسنګا په مشرۍ یو ائتلاف جوړ کړی و. ځکه نو د ډیلي سلطنت صرف په نوم چلېدی. د دغو کوچنیو حکومتونو تر شا یعني په جنوب ختیځ کې هم (د بنګل کنډ او ګوند وانه) هندو سیمه ییز حکومتونه مستقر وو. په شمال کې ګجرات، مالوه او کندیش د خپلواکو اسلامي سیمه ییزو حکومتونو په توګه چلېدل. په دکن کې حالات تر دې هم خراب وو. ځکه نو هندوستان په مجموع کې پر څه باندې لسو محلي ځانځاني حکومتونو وېشل سوی و او د ډیلي سلطنت په دغسې یو ناوړه حالت کې واکمن و. له بلې خوا، راناسنګا د راجپوتانه د ختیځې برخې پر سر د ابراهیم لودي سره شخړه لرله، نو ځکه ده هم بابر ته د ابراهیم لودي پر خلاف بلنه او د دوستۍ لاس ورکړ.

جنګسالار بابر د دې شخړو او نفاق څخه لویه ګټه واخیسته. پر پنجاب یې څو حملې وکړې. والي (دولت خان لودي) او حتی پخپله د ابراهیم لودي اکا (عالم خان لودي) په ۱۵۲۳ کې د ډیلي د سلطنت پر خلاف د بابر سره ودرېدل (دولت خان د پنجاب د صلاحیت لرونکي والي کېدو په اسره، او عالم خان لودي هم د خپل وراره څخه د ډیلي د سلطنت اخیستو په هوس بابر ته لاس ورکړ).

بابر دولت خان لودي ته داسې وویل:

"تا د دېرشو کالو راهیسې د سلطان ابراهیم او د هغه د پلار نمک خوړلی دئ. اوس ولې دغسې کوې؟"

هغه ورته وویل، چې: دا صحیح ده چې پلار او نیکه مې ډېر کلونه د هغوی په خدمت کې تېر کړي دي، خو دغه سلطان خپل ډېر وفادار اتباع وژلي دي. ده بېله کوم دلیله خپل ۲۳ بهترین خلک له منځه وړي او د هغوی کورونه یې وران کړي دي. همدا علت دئ چې مخورو زه تا ته رالېږلی یم تر څو رسماً بیعت درته وکړو او هغوی په بې صبرۍ سره منتظر دي. نو هغه و چې بابر هم ژمنه ورسره وکړه، چې د سلطان ابراهیم سره به جنګېږي او هغه به ماتوي. خو بابر چې کله پر لاهور حمله وکړه نو د دولت خان لودي سره یې خیانت وکړ او هغه یې له صحنې وشړی، څو چې هغه هم په تجرید او حسرت کې پسې مړ سو. بابر د پنجاب تر نیولو وروسته مخ پر ډیلي وخوځېد او د پاني پت په ارت دښت کې مورچل بندي سو.

اکثره منابع د بابر د پوځیانو شمېر ۱۲ – ۱۵ زره او د سلطان ابراهیم لودي پوځیان د یو لک (یعني سل زره) په شاوخوا کې بولي. څنګه چې زیاترو منابعو دا تعداد د بابر د خپلو خاطراتو (بابر نامه – تزک بابري) څخه اخیستی، نو ځکه مؤثق نه ښکاري او دا نن یو تریخ حقیقت ثابت سوی، چې د جګړې سوبمن لوری تل ملامت یا مجرم راپېژني او تاریخ هم په دې هکله پټه خوله نیولې وي.

په هر صورت، دواړه پوځونه د پاني پت په ارت دښت کې یو بل ته مخامخ ځای

پر ځای سول. د بابر زوی همایون د ده پر ښي خوا مورچل بندي سو، او کیڼي خوا ته یې محمد سلطان میرزا سنګر ونیو. د هغوی دواړو هدف دا و، چي د ابراهیم لودي پوځیان به محاصره کوي. تر نیمایي ډېر پوځیان په مرکزي برخه کي ځای پر ځای سول او پخپله بابر همدلته جنګ قومانده کاوه. د ټولو شا ته سامان آلات، لوژستیک او هغه ښځي موجودي وې چي پوځیان به یې خوشاله او تازه ساتل. بابر په مرکزي برخه کي ارابه لرونکي ګاډي او نور عراده جات داسي ځای پر ځای کړل، چي د ونو له څانګو یې ډک کړل او د هري ګاډي او کراچي تر منځ یې شپاړس متره واټن خالي پرېښود، چي له هغه ځایه به توپونو او ویشتونکو آلاتو خپل ګوزارونه کول. بل دا چي له همدې برخو څخه به سپرو عسکرو پرغلیم یرغل هم کاوه.

د بابر دغه او هر جنګ د ګوډ تېمور او چنګېز غوندي علمي او د یو ځانګړي پلان له مخي طرح سوی و. د ده یو لوی تدبیر دا و، چي د غشو ویشتونکو او توره لرونکو پوځیانو په قطار کي یې خپله عصري او مجهزه توپخانه هم پر یو وخت استعمالوله او دا د هند په تاریخ کي لومړنی جنګ دئ، چي باروت پکښي استعمالېږي.

خو د دې برخلاف، د سلطان ابراهیم پوځونه په شمېر ډېر مګر د جنګي تاکتیک او منظم پلان څخه بې برخي وو. د هغوی اصلي شمېر پنځوس زرو ته رسېدی لاکن توپخانه یې نه لرله حال دا چي څه نا څه زر پیلان یې لرل. د لودي پوځیان اکثره ناراضه او زړه نا زړه وو، ځکه د پوځ اصلي قوماندانان قومي مشران وو او ابراهیم لودي ته یې د زړه له اخلاصه وفاداري نه لرله. حتی ویل کېږي چي ځیني هغوی موقع ته په انتظار وو، څو چي پوځیان یې د جنګ پر مهال شاتګ ته هڅول.

د سلطان ابراهیم پوځیان ټول پښتانه وو، خو د بابر پوځیان ازبکان، ترکان، عرب، تاجک او لږ شمېر افغانان وو. د لودي پوځ صرف د ځانو د بقأ او د لودي لپاره جنګېدل حال دا چي د بابر پوځیان د ډیلي د سلطنت د نیولو په احساس راغلي او په کلک هوډ سره جنګېدل. بل دا چي سلطان ابراهیم لودي ته خپل پوځ په میراث رسېدلی و او هغه دونه وخت پیدا نه کړ، چي له سره یې تنظیم او پر خپله طریقه کارولی وای، بابر دا مهلت ور نه کړ.

کله چي د اپریل پر یوویشتمه ځانښت مهال جګړه پیل سوه نو د بابر پوځیانو په ډېر شدت او سرعت سره جنګ کاوه حال دا چي افغانانو په بطالت او تردد سره مقابله کوله. بابر داسي لیکي:

"ابراهیم لودي یو بې تجربه ځوان و، او د جګړې پر مهال بېله سنجش او بېله کوم خاص پلان څخه په زړه نا زړه ډول جنګېدی او همدا تردد یې د ماتي علت س".

د ابراهیم لودي د هر پوځي د یو غشي په ځواب کي د بابر پوځي درې غشي ور خطا کول او درې واره به په هدف

کي لګېدل. ويل کېږي، چي د بابر غشي ويشتونکي ډېر ماهر او ښکاريان وو، چي غشو به يې د پيلانو پوست سوری کاوه، او هر ډول هدف يې د ۶۰ – ۷۰ متره واټن څخه په اغېزمنه توګه ويشتلای سو. دغه کار ابراهيم لودي بې حوصله کړ، څو چي ډېر سخت يرغل يې وکړ او په څلور ساعته کي يې درې ميله سيمه ونيوله او څه باندي دوه زره مغولي پوځيان يې ووژل. خو کله چي پوځيان ډېر مخته ورغلل نو د منظم پلان د نشتوالي له امله ځای پر ځای ودرېدل، او نه پوهېدل چي څه وکړي (آيا نور هم مخته ولاړ سي؟ ځای پر ځای ودرېږي او نيول سوې منطقه وساتي؟ او که بيرته را پر شا سي؟) بابر چي ډېره جنګي تجربه او سابقه لرله، بېله ځنډه د دې تردد څخه ګټه واخيسته او د دوو خواوو څخه يې افغانان کلابند کړل او توپونو ته يې د غليم پر مرکزي او مخکښه تجمع باندي د شديد ګوزار امر وکړ. څنګه چي دا په هند کي د باروتو لومړنی استعمال و، نو د بابر د توپچي ځواک مسلسلو ګوزارونو د جنګ پر ډګر څلور غوڅي او ټاکونکي اغېزې وښندلې، يعني:

لومړي : د افغانانو پيلان د دې پرله پسې درنو او هيبت ناکو ږغونو له امله وتورېدل، له کنټروله ووتل، بې اختياره دوري هوري په ځغستا سول، څو چي په سلګونو آن زرګونو خپل پوځيان يې تر پښو لاندي لتپېر کړل.

دوهم: د افغانانو د قوماندې او پرمخيون لړۍ يې وشلوله او يوه مطلقه ګډوډي او خپل سري په ګډه سوه.

درېيم: دې کار په زرګونو افغانان د پرشاتګ او درنو تلفاتو سره مخامخ کړل چي مغولو ته يې نور سبک او جرئت هم پسې ورکړ.

څلورم: پای دا چي د پاني پت ميدان د شلو زرو پښتنو وينو پر سر واخيست او دې کار په هند کي د پښتنو د بالقوه واک پای راپيل کړ.

سلطان ابراهيم لودي تر پايه سخت وجنګېد څو چي پخپله هم ووژل سو. د ده سر يې پرې کړ او بابر ته يې راوړ. بابر چي کله د سلطان ابراهيم لودي جسد ته راغی نو د اعتراف په توګه يې داسي مخاطب کړ:

"ستا زړه ورتوب او مېړاني ته د احترام مراتب ادا کوم".

تاريخ پوهان په دې عقيده دي، چي که ابراهيم لودي او پوځيانو يې فقط يو ساعت نور هم جنګ ته دوام ورکړی وای. نو بابر به ډېره سخته ماته خوړلې وای او ممکن تر کابل پوري يې خپلي ټولي سيمي د لاسه هم ورکړي وای، ځکه:

الف: بابر نور اکمالات نه سول کولای او هر څه يې پای ته رسېدل.

ب: بابر نور ذخيروي يا احتياطي پوځيان نه لرل او نه يې هم له بله ځايه تهيه کولای سول.

ج: هندوانو مغول يرغلګر بلل او د هغوی په پرتله يې پښتنو ته ډېره لوړتيا او ترجيح ورکوله. او رانا سنګا هم د بابر سره

خپل ملګرتوب ختم اعلان کړ.
د: د بابر پوځ د شا له خوا خپل ارتباط د لاسه ورکړی و، بس په همدې پاني پت کې تجريد او ايسار پاته و.
په هر حال، دا چې د بابر پوځيان په شمېر لږ وو، خو بيا هم کامياب سول، خپل علتونه لري چې هغه عمدتاً شپږ دي، يعني:
لومړی: څنګه چې بابر د خپل ټول قوت سره پاني پت ته راغلی او پر ميدان پاته و، نو دا جنګ د هغوی لپاره د تباهۍ يا کاميابۍ جنګ و، او هغوی طبعاً د خپل ژوند په بيه د (ناکامۍ) په پرتله (کاميابۍ) ته مجبوراً لومړيتوب ورکاوه.
حال دا چې لودي پوځ د غليم د اصلي ارادې او مجبوريت څخه بې خبره و. آن د ډيلي د بايللو هيڅ کوم تصور يې هم نه کاوه.
دوهم: د بابر پوځ عالي دسپلين، او سپينيزه تکل او خورا مجهز او ګوزاريز توپونه او مجرب، ماهر او مسلکي پوځيان لرل. دا يو لاس پوځ و، چې د هندوستان د نيولو ټينګه تلوسه يې لرله.
حال دا چې د ابراهيم لودي پوځ ټوټې ټوټې و، يعني هر خان او سردار خپل خپل پوځ اداره کاوه او کومه توپخانه يې هم نه لرله.
دريیم: له يوې خوا بابر ته د دولت خان لودي او عالم خان لودي عملي کومک او بيعت او د بلې خوا د ډيلي په شاوخوا کې نفاق او د ټولو سره د ابراهيم لودي مخالفت او عداوت نوموړی د
خوړېدو او سولېدو ور ګرځولی و.
څلورم: د هندو (راناسنګا) له خوا بابر ته بلنه او د هغه هڅونه (چې وروسته بيرته پښېمانه سو خو نور نو ډېر ناوخته سوی و).
پنځم: بابر شخصاً يو لوی جنګسالار او مجرب قوماندان و، چې د کوچنيوالي څخه په جنګ جګړو کې را لوی سوی و. حال دا چې ابراهيم لودي يو بې تجربه ځوان و، سياسي کمزوري او وچه دلاوري يې لرله او په ميراثي ډول پاچهۍ ته رسېدلی و. ده لوی پوځ درلود خو د هغه په اغېزمن کنټرول نه پوهېدی.
شپږم: ابراهيم لودي د مخکي څخه لا د دوو ډلو د مخالفت او عداوت سره مخامخ و، چې لومړې بېلابېل سيمه ييز کوچني حکومتونه وو (چې پورته ذکر سول) او دوهم د ده پخپل ټبر او حتی کهول کې د مخورو، عزيزانو او مشرانو د دښمنۍ په غېږ ورغلی و (چې پورته اشاره ورته سوې ده). دغو نيمګړتياوو، ناخوالو او ګواښمنو څپو ابراهيم لودي زيان منونکی او ماتېدونکی کړی و. څو چې د بابر له خوا پسې مات سو او په دې توګه د هند پښتني حکومت هم د تل لپاره د هند په سمندر کې ډوب او غرق سو.
په هر صورت، که څه هم په دې جګړه کې د افغانانو نفاق او د بابر د پوځ لوړ دسپلين په تېره بيا د هغه د اور غورځوونکو ګلولو او سوځوونکو آلاتو استعمال هغه عوامل وو، چې افغانان يې مات کړل. خو څنګه چې دغه تاکتيکونه او

فنون وروسته شېرشاه سوري زده کړل، نو په عين همدغو تاکتيکونو او چمونو سره يې د بابر زوی همايون ته سخته ماته ورکړه (۱۵۳۹ ميلادي) ، او په ډيلي کې يې يو ځل بيا (د بابر تر مړيني وروسته) د پښتنو حکومت قايم کړ. مګر له بده مرغه د ده په نابيره مړينه سره هلته د پښتنو د بالقوه زوال مخ را ونه ګرځېدی.

بابر د دې جګړې څخه برياليی راووت او د ابراهيم لودي په شمول يې شل زره پښتانه ووژل، چې د هغوی په وينو د پاني پت مځکه نن سور رنګ لري او د خاورې په ذره ذره کې يې د بدنونو حجرات پراته دي. بابر ته د ډيلي سلطنت ټول ميراث، خزانه او غنيمت په لاس ورغلل. دی دوې اوونۍ وروسته اګرې ته ورسېد او هلته د (کوه نور) مشهور الماس ورکړه سو. په دې سوبه سره هندوستان د څه باندي دوو پېړيو لپاره د مغولو په قبضه کې راغی او همالته د پښتنو عملي زوال را پيل سو.

## د پاني پت دوهمه جګړه :

دا جګړه د ۱۵۵۶ ميلادي کال د نومبر پر پنځمه د عادل شاه سوري د هندو قوماندان (هيمو) او بابر د لمسي (جلال الدين اکبر) تر منځ پېښه سوې ده. هيمو ډېر پوځيان او ۱۵۰۰ پيلان لرل. هيمو (چې اصلي نوم يې هيماچندرا بهرګاوا دئ) کامیابېدونکی و ، خو نابيره يو غشی د ده پر سترګه ولګېد او د آس څخه رالولېد او بېهوښه سو ، څو چې تر نيول کېدو وروسته اکبر ته راوستل سو. اکبر هم د هغه د سر پرې کولو امر صادر کړ او په دې ډول ووژل سو او اکبر د ډيلي او اګرې واکمن سو.

عادل شاه سوري د شېرشاه سوري اووم لمسی او د دې کهول وروستی واکمن و، چې د ډيلي د ختيځ پر يوه کوچنۍ سيمه يې واک چلاوه. نوموړی د سکندرشاه سوري ورور و، چې هغه په ۱۵۵۵ کې د بابر د زوی (همايون) له خوا مات سوی و. عادل شاه او سکندرشاه د اکبر مغولي پاچا پر خلاف د ډيلي د تخت دعوه کوونکي وو.

کله چې په ۱۵۵۶ کې اکبر پاچا د ډيلي څخه د يو پوځي مأموريت لپاره دباندي تللی و، نو (هيمو) د اکبر پر قوماندان (طرزي بېګ) باندي نابيره يو ه سخته حمله وکړه او پسې مات يې کړ او هغه هم د ډيلي څخه وتښتېد. دا د (هيمو) دوه ويشتمه پوځي سوبه وه او سمدلاسه يې د عادل شاه سره خيانت وکړ او ځان يې د هغه پر ځای پخپله (د راجا ويکرم جيت په نوم) پاچا اعلان کړ. خو د ۱۵۵۶ د نومبر پر پنځمه د مغولي اکبر ځواکونو د بيرم خان (بهرام خان) په قومانده د پاني پت په دوهمه جګړه کې هيمو مات کړ او مغولي سلطنت په دې ډول د ۱۵۰ نورو کلونو لپاره ټينګ سو. پنځه مياشتي وروسته (يعني د ۱۵۵۷ په اپريل کې) د بنګال بهادرشاه د منګير په جګړه کې عادل شاه سوري ته ماته ورکړه او هغه يې تر نيولو وروسته پسي ووژی او په دې ډول د هند پښتني سلطنت نور نو په نوم هم پای



ته ورسېد.

د پاني پت دوهمي جګړې هم د زرګونو پښتنو ککرۍ وخوړلې، ځکه د عادل شاه سوري د قوماندان (هيمو) او اکبر په ځواکونو کي بې شمېره پښتانه شامل وو. خو د دې سره سره بيا هم دغې جګړې د افغانستان سره مستقيم تړاو نه درلود، بلکي صرف د هندوستان د جغرافيوي چوکاټ په دننه کي له اهميته ډکه ده.

## د پاني پت درېيمه جګړه :

د پاني پت درېيمه جګړه د ۱۷۶۱ د جنوري پر ۱۴ د اعليحضرت احمدشاه بابا د پوځ او مرهټه ائتلاف تر منځ پيښه سوه، چي يو د شمال څخه او بل هم د جنوب څخه پاني پت ته راغلي وو. دغه جګړه د پاني پت د مخکنيو دوو جګړو څخه ځکه ډېره مهمه ده، چي د دواړو هېوادونو (افغانستان او هندوستان) معاصر تاريخ ته يې بدلونيزه لوری ورکړ. په دې جګړه کي د افغانانو د سوبې ستراتيژيکي اهميت دا دئ، چي نه يوازي يې د مرهټه وو ستر ځواک پر ګونډو کړ، بلکي دا د هندوانو او افغانانو يو داسي تن په تن شديد جنګ و، چي تر هغه مهاله يې ساری نه درلود. حتي وروسته هم بې مثاله دئ.

د پاني پت درېيمه جګړه د زمان په داسي يوه تاريخي مقطع کي پيښه سوې. چي په افغانستان کي مرکزي واک تازه راټوکېدلی او غښتلی سوی و، خو برعکس په هند کي هغه کمزوره او سره پاشلی و. د ډيلي مغولي سلطنت ځکه صرف په نوم واکمن و، چي د شمال له خوا نادر افشار او د جنوب له خوا هم مرهټه وو هغه ځپلی او رټلی و.

ښه به دا وي چي د دې جګړې د پېښېدو عواملو ته يوه لنډه کتنه وکړو. ډېره مهمه او حساسه باريکي دا ده. چي

ځيني حاسدان او بد خواهان يا په بله ژبه د افغاني او پښتني تاريخ مسخه کوونکي څېړې ادعا کوي، تور لګوي او دروغ وايي چې احمد شاه بابا ګواکې صرف د هند مادي نعمتونو يا خزانې او يا هم د هغه ځای د استعمار هوس ورجذباوه او په دې ډول ګواکې د لسګونو زره افغانانو د هلاکت سبب سو او د هند اداري چارې يې ناحقه ګويا بيرته هنديانو ته وسپارلې.

دغسې له غرضه ډک تهمتونه ځکه بي [illegible] او کاذب دي، چې پخپله تاريخي اسنادو هغه دروغ او له حقيقته ليري ثابت کړي دي. ښه به دا وي چې لږ څه شاته ولاړ سو او ګام پر ګام د پاني پت دريمي جګړې ته راسو، چې هغه ولې او څنګه پېښه سوه.

په اصل کې څلورو لويو عواملو دا جګړه پيښه کړه، چې هغه په لنډه توګه د مغولي سلطنت کمزوره کېدل، د مرهيټه وو را مخته کېدل، د مسلمانانو کړول او بالاخره د افغانستان لاندي کول وو. اوس به هر علت مختصراً داسې وشنو:

**لومړي – د مغولي سلطنت کمزوره کېدل:**

د ډيلي مغولي سلطنت د اتلسمي پېړۍ د پيل راهيسې (يعني په ۱۷۰۷ کې) د اورنګزيب تر مړيني وروسته سوکه سوکه پر کوچنيو او سيمه ييزو حکومتونو وېشل سوی و. له دې نه پرته نادر افشار په ۱۷۳۹ کې مخ پر ډيلي وخوځېد او د ډيلي دربار ټول جواهرات، خزانه او د طاؤس تخت يې چور کړل، اکثريت وګړي يې تر تېغ تېر کړل، او مغولي واک يې په بالقوه توګه پای ته ورساوه، چې نور نو يوازې په نوم او تشريفاتي ډول ژوندی و. دې کار هر يرغلګر په تېره بيا مرهيټه متعصبان تېري ته هڅول.

**دوهم – د مرهيټه وو يرغل:**

د ډيلي سلطنت په شمال کې د نادر افشار تر وژلو وروسته له نور نښتېځلو څخه بېغمه سو خو د جنوب له خوا بيا مرهيټه متعصبو د هغه د دې کمزورۍ، مفلسۍ او بېکسۍ څخه ناوړه ګټه واخيسته او د يو جبري تړون له مخې يې د ډيلي په مغولي اداره او خزانه کې د ونډې امتيازات او حقوق تر لاسه کړل. مرهيټان د شمالي هند پر ډېره برخه مسلط او قابض سول، چې له دې امله مغولي پاچا (دوهم شاه عالم) نور نو په ډېر حسرت او مشقت سره شپې سبا کولې او هيڅ صلاحيت يې نه درلود. علاوتاً، مرهيټه وو بېله ځنډه (په ۱۷۵۸ کې) پنجاب هم پسې ونيو او مابعده هدف يې د توي جوړ سوي افغانستان نيول و، چې دې پلان يې په سيمه کې د ځواک د انډول ګړندی بدلون رامنځته کړ.

**دريېم – د مسلمانانو ځورول:**

هندو راجپوتانو، جټانو او په تيره بيا مرهيټه وو په شمالي هند کې د اشغالي سيمو د ټولو هغو مسلمانانو خصوصاً پښتنو ځورولو او کړولو ته لاس واچاوه، چې د دوی ملګرتيا به يې نه کول. د دوی

هدايات به يې نه منل، د دوی بيعت او اطاعت به يې کاوه او د دوی مالي او پوځي امداد به يې نه کاوه. د دغسې ظلمت او وحشت لوی قربانيان د نجيب الدوله تر قوماندې لاندې پښتني مسلمانان وو، چې مرهيټه وو پسې اخيستي وو. دغو هندوانو په تېره بيا متعصبو مرهيټه وو په زرګونو مسلمانان بنديان، فراره او يا ووژل چې دې مغرورانه اعمالو مسلمان مشران (په تېره بيا شاه ولي الله دهلوي) مجبور کړل، چې احمد شاه بابا ته د اسلامي امت د ژغورلو او خلاصون دعوت ورکړي تر څو هغه په هره توګه چې وي هرو مرو ځان را ورسوي او خپل اسلامي مسئوليت ادا کړي. شاه ولي الله رحمة الله عليه احمد شاه ابدالي ته داسې وليکل:

"د راحت ژوند پرېږده. توره راوباسه او تر هغو يې په تيکي کې بيرته مه ننباسه څو چې د اصلي ايمان او کفر تر منځ فاصله نه وي ايجاد سوې". له دې نه پرته، د ډيلي واکمن دوهم عالمګير او نجيب الدوله هم کندهار ته ليکونه ولېږل او د هندي مسلمانانو د خلاصون او نجات لپاره يې احمد شاه بابا راوباله.

## څلرم - پر افغانستان د يرغل ګواښ:

مرهيټه يرغلګر د جنوب ختيځ هندوستان د (پونه) څخه تر ډيلي پورې مخته راغلل او پر مغولي واکمن (دوهم شاه عالم) يې جبه کښېښوول. مرهيټه متعصبين وروسته د ډيلي څخه نور هم مخ پر شمال وخوځېدل څو چې د ۱۷۵۸ په مارچ کې يې سرهند او يوه مياشت وروسته يې لاهور هم پسې ونيول او د احمد شاه بابا زوی تېمور شاه يې هلته مات او د لاهور څخه وشړی. دا لا څه. مرهيټه وو غوښته چې خپل دغه پرمختيون ته پايښت ورکړي آن د افغانستان زړه يعنې کندهار ته ځانونه ورسوي او دا ټولي سيمې لاندې کړي. مشهور هندی تاريخپوه (کوشيک روي) ليکي، چې: د دې جنګ مرهيټه قوماندان رګوبا د لاهور څخه د تېمور شاه تر شړلو وروسته په (پونه) کې خپل پېشوا (يعني واکمن) ته د ۱۷۵۸ د مې پر څلرمه يو ليک ولېږی او په هغه کې يې داسې ورته وليکل:

"مونږ د مخکې څخه لا تر ډېره حده لاهور، مُلتان، کشمير او نور وطنونه چې د اټک پر دغه څنډه واقع دي نيولي دي او هغه سيمې به هم ډېر ژر ونيسو چې د مګړی زمونږ تر واک لاندې نه دي راغلي. د احمد خان ابدالي زوی تېمور سلطان او جهانخان زمونږ د پوځيانو تر تعقيب لاندې دي او د هغوی پوځونه په بشپړه توګه لوټ کړای سول. هغوی دواړه اوس د يو څو ماتو ګوډو پوځيانو سره پېښور ته رسېدلي دي ... مونږ دا تصميم لرو، چې خپل واک تر کندهار پورې وغځوو".

هو! پر هند باندې بالعموم او پر مرهيټه وو باندې بالخصوص د احمد شاه بابا د يرغل يو علت د همدې مرګوني تهديد پای ته رسول و، نه کوم استعماري

هوس یا بل څه. د احمد شاه بابا دغه یرغل تعرضي نه بلکي تدافعي او التزامي جنبه لرله، یعني یو بشپړ مجبوریت و.

احمد شاه بابا چي د خپل زوی تېمور شاه او ملګرو حالت ولید، چي مرهیټانو او سیکانو د لاهور څخه وشړل او کله چي یې د هغوی دا بیانونه واورېدل چي د مرهیټانو او سیکانو ائتلاف پر جدیدالتأسیس افغانستان باندي هم د یلغار تصمیم لري، نو ډېر وخښمېد.

احمد شاه بابا د یو مجرب جنرال په توګه په ۱۷۵۹ کي د افغانانو یو لوی (یعني دیرش زره کسیز) پوځ تهیه او سربنته کړ او د (روهیله) نجیب خان یوسفزي سره تر مشورې او مفاهمې وروسته د همدې کال په پای کي



لاهور ته وخوځېد او تر ډېلي پوري یې د غلیمانو ټول پوځونه مات کړل او وروسته یې خپل پوځ د روهیله په ګاونډ کي (انوپ شهر) ته ورساوه او هلته یې د (اوده) د مشر (نواب) شجاع الدوله سره تړون وکړ. تر څو په ګډه په پر مرهیټانو باندي ورځي. نجیب خان او شجاع الدوله ځکه د مرهیټه وو سره جنګېدل چي د هغوی ظلمونه یې پر خپلو مسلمانانو باندي په سترګو لیدل.

فلهذا، څلور عمده عوامل وو، چي د

پاني پت دریيمه جګړه يې حتمي او لازمي کړه. که دا څلور لاملونه نور هم پسي وشنو، نو موضوع به ډېره اوږده سي. په هر حال، په پاني پت کې د زرګونو افغانانو په تیره بیا پښتنو د وینو تویېدل د افغانستان د دفاع یو جبر و، نه کومه جاه طلبي یا مادي نفع. وګورئ د پاني پت له جنګه وروسته د احمد شاه بابا ډېر پوځیان ځکه ګیله من او خوابدي وو، چي تنخاوي يې نه وې اخیستي او خپل وطن ته يې پر تګ مسلسل ټینګار کاوه. دا چي ځیني مغرضین او د افغاني تاریخ مسخه کوونکي په غلطه ادعا کوي، چي احمد شاه بابا ګواکي د هندوستان ثروت او خزانې ورکشاوه، کوړ تهمت او درواغ ده. وګورئ یو ځل نادر افشار د طاؤس د تخت په شمول هر څه لوټ کړي وو، بیا مرهیټانو جبراً د ډیلي د مغولي حکومت ټول ثروت او خزانې پسي لوټ کړې. احمد شاه بابا چي سوقیات کول، هلته هیڅ هم نه وو پاته، بلکي خزانې تشي توري ولاړې وې.

انګریز تاریخ پوه مالیسن یو نیم سل کاله پخوا لیکي چي:

"احمد شاه ابدالي ښه پوهېدی، چي د هند ویني وچي سوي دي، څه نه لري چي وړي يې واي. نو د ده په نزد بهترینه چاره دا وه، چي هندیانو او مغولو ته يې کورنۍ خپلواکي ورکړه او خپل هېواد ته ولاړ".

په هر صورت، اوس به راسو د پاني پت دریيمي جګړې ته چي څنګه پلان او توحید کړه سوه. احمد شاه بابا د نصیر خان بلوڅ تر آرامولو وروسته د خپل دېرش زره کسیز پوځ سره (چي مخکي ذکر سو) مخ پر هند وخوځېد. مرهیټه چي د ابدالي پوځ په راتګ خبر سول، نو د پنجاب څخه وتښتېدل او سهارنپور ته ولاړل تر څو هلته د خپل لوی قوماندان (ماجي سندیا) سره مل سوي وای چي د نجیب الدوله یوسفزي او شجاع الدوله سره په جنګ اخته و. دا مهال د مرهیټه وو څلور لوی قوتونه د احمد شاه ابدالي د راتګ په وړاندي مستقر سول:

الف: د سندیا په مشری یو لوی پوځ ډیلي ته د ابدالي پوځ د راتګ په وړاندي.

ب: د هولکر په مشری یو لوی پوځ د جمنا د سیند پر کیڼ اړخ.

ج: د جګوراو او غازي الدین دوه پوځونه په ډیلي کي مورچل بندي سول.

د: د دکن مرهیټه دولت، چي د دوی شاته د مرکزي حکومت او ځواک په توګه قرار درلود.

د دغو ټولو پوځیانو مجموعي شمېر څه باندي یو لک (سل زرو) ته رسېدی. ابدالي پوځ سهارنپور ته را ورسېد او هلته د نجیب الدوله او روهیله پښتني خوانینو (لکه سعدالله خان، حافظ رحمت خان او د هغه زوی عنایت خان، دوندي خان او قطب خان) د لس زره کسیز پوځ سره ملګری سو او هغوی يې د مرهیټه وو له ګوزارونو څخه خلاص کړل. په دې ډول ابدالي پوځ څلوېښتو زرو کسو ته ورسېد او مخ پر ډیلي وخوځېد. مرهیټه قوماندان

سندیا) ډیلي ته نږدې په (بدني) کې د یو لوی پوځ سره مقابلې ته ورغي، چې په نتیجه کې ډېر شدید جنګ پېښ سو. افغاني پوځیانو په دونه شدت او سرعت سره حمله پر وکړه، چې څو زره پوځیان یې ور ووژل او سندیا د متباقي پوځیانو سره په چارنالو وتښتېد، چې ۴۰ کیلومتره پسې تعقیب او هلاک سول. دغه ویرجن خبر مرهیټه بې اوره کباب کړل.

د احمد شاهي پوځ پنځلس زره سپاره پوځیان بېله ځنډه د شاه پسند خان اسحاقزي په قومانده تر جمنا پوري وتل او هلته یې د هولکر پوځیان غافلګیره او پسې مکوټ کړل. هولکر د صرف څو سوو کسو سره مالوه ته په تېښته بریالي سو. سورج مل او غازي الدین دواړه ابدالي پوځ ته ژوندي په لاس ورغلل مګر د حافظ رحمت خان په شفاعت له مرګه خلاص سول.

احمد شاه بابا دوه زره پوځیان د یعقوب علي پښتون او نواب محسن الملک په مشری په ډیلي کې پرېښودل او پخپله د نور ټول پوځ سره تر جمنا را پوري ووت او په انوپ شهر کې د مرهیټه وو د غبرګون په انتظار کښېناست. دا مهال احمد خان بنګښ د فرخ آباد څخه او شجاع الدوله هم د (اوده) څخه د خپل لس زره پوځ سره راورسېدل او د احمد شاه بابا سره یو ځاي سول (شجاع الدوله د مشهور صفدرجنګ زوی دئ، چې د پاني پت تر فتحې وروسته یې په ډیلي کې د لال کلا تر څنګ د احمد شاه بابا په افتخار یو ښکلی مسجد جوړ کړ، چې د منارو څوکې یې د سرو زرو دي او دا جومات نن هم په خپل ټول عظمت سره ولاړ دئ). تر دې لږ څه وروسته لس زره نور پوځیان هم له کندهاره تازه راورسېدل (چې جمعاً شپېته زره کسیز پیاوړي پوځ سو چې یوه درنه توپخانه یې هم لرله). دوی ټول په همدې انوپ شهر کې مرهیټانو ته په انتظار کښېناستل.

هلته د مرهیټه وو پېشوا (بالاجي باجي) د هندوستان ټولو هندوانو (لکه مرهیټه وو، راجپوتانو، جټانو او نورو) ته د یو ستر پوځ د جوړولو هدایت وکړ، څو چې څلور میاشتې تېري سوې او دا لوی پوځ تهیه سو، چې جمعاً دوه سوه زره (دوه لکه کسان) سول. مشهور قوماندانان یې ملهار راو، هولکر، ماجي سندیا، ابراهیم ګاردي، شمشېر راو او نور وو. د پوځ عمومي قوماندان د پېشوا خپل ورور (سدا شیو بهاو) و او خپل زوی (ویشواس راو) یې د هندوستان د آینده پاچا په نوم ورسره ملګری کړ. د دې عظیم پوځ ترکیب په دې ډول و: سپاره پوځیان: ۱۳۰۰۰۰ کسان، پلي پوځیان: ۷۰۰۰۰ کسان، ۲۵۰۰ جنګي او انتقالاتي پیلان، ۲۰۰۰۰۰ ګامیښي، څو زره اوښان او په زرګونو ملکي انسانان، چې د پوځیانو مرستندویان وو. خو د مرهیټه مشر لوی سلاکار (سورج مل) هغه ته جدي مشوره ورکړه، چې د افغانانو سره مخامخ او پر هواره جنګ مه کوه. ځکه دغسې کار زموږ په تاوان او د هغوی په ګټه دئ.




بلکي د افغانانو پر ضد
باید چریکي عملیات
وسي او سخت يې ستړي
او هلاک کړو، ځو چي له
هنده تیښتي ته مجبور
سي. خو (سدا شیو
بهاو) د ده مشوره په
باک رانه وړه.

په هر صورت، دغه
ستر پوځ په ډيلي کي د
احمد شاه بابا پر مخکښ
پوځ باندي سخته حمله
وکړه. په ګنجپوره کي
یې عبدالصمد خان
اشتنغری د خپلو ټولو
پوځیانو سره له منځه
یووړ. څنګه چي د جمنا
اوبه ډېري راپورته سوي
وې، نو ځکه نور افغاني
پوځیان کومک ته نه
سول ور رسېدای او په
دې ډول د جمنا پر راسته
خوا د ابدالي پوځ
امنیتي پایګاه ونړېده، او اوس نو په هره
توګه او هر څونه تلفاتو چي کېده، هغوي
باید هرومرو تر سیند ورپوري وتلي وای.
د ابدالي پوځ یو قوماندان (احمد خان) د
خپلو دوو زرو خیبري پوځیانو سره په اوبو
کي ډوب او یا هم د پوري وتلو پر مهال
مرهیټانو له منځه یووړل. نو ځکه افغاني
پوځیان مجبوراً په (پاکپت) کي په ډېر
مشکل سره تر جمنا راپوري وتل او مخ پر




د احمد شاه بابا جنګي ملګري (بلوڅان)

ګنجپوره وخوځېدل او د خوراکي موادو
دغه ستر ګودام او لویه کلا یې ونیوله.
مرهیټه وو له مخکي څخه پاني پت د
جګړې لپاره غوره کړی و او هلته
وخوځېدل او کلکي مورچې یې جوړې
کړې.

سرهیټه وو خپل پنځه ویشت زره
پوځیان په (سنبالک) کي د افغانانو په
وړاندي مستقر کړل. خو د شاه پسند خان

په قومانده افغاني مخکښ پوځ سنبالک ته په مجردي رسېدو سره پر هغوی سخت يلغار وکړ او مرهيټان يې له تيغه تېر کړل (خو ځيني هندي منابع ادعا کوي، چې دا پوځيان شل زره وو، چې د لرګو او بوټو د ټولولو لپاره وتلي وو، نه د جنګ لپاره). وروسته له دې احمد شاه بابا د اصلي پوځ سره د ۱۷۶۰ د اکتوبر پر ۲۹ پاني پت ته را ورسېد او ځای پر ځای سو. احمد شاه بابا د يو بهترين پوځي تدبير له مخې خپل پوځونه داسې مورچل بندي کړل چې د هلال غوندې پر مرهيټه وو راتاو سول او دا احتمالي خطر يې له منځه يوړ، چې د هغوی له خوا د دوو جناحو او شا له طرفه تر حملې لاندې راسي.

احمد شاه بابا پر يوه لوړه غونډۍ سور رنګه خېمه لرله. دی به هره ورځ راتی او لمونځونه به يې همدلته ادا کول او د دښمن جنګي وضعيت به يې مطالعه کاوه. د شپې به يې پنځه زره خورا مجهز پوځيان د غليم د جبهو کرښو ته نږدې ورلېږل تر څو پر خپلو عسکرو پام وکړي او هر ډول ناڅاپي عملياتو ته چمتو وي او په عين حال کي پرې نه ږدي، چې په شپه کي دښمن ته اکمالات او اذوقه راورسېږي.

دوه نيمې مياشتې دغه دواړه خورا غښتلي او غيرتي پوځونه يو بل ته په داسي حال کي مخامخ مستقر وو، چې د دواړو تر منځ ۱۲ کيلومتره ميدان خالي و. دواړو پوځونو به يو پر بل کله کله غلچکي او ناڅاپي کوچنۍ مګر شديدي حملې کولې، خو اصلي جګړه د ۱۷۶۱ د جنورۍ پر ۱۴ پيل سوه. دا چې اصلي جګړه ولې دوه نيمې مياشتې وځنډېده، علت يې دا و، چې مرهيټان د ابدالي پوځ د برید په تمه وو تر څو حوصله يې ور ختمه کړي، حال دا چې احمدشاه بابا بيا غوښته چې د مرهيټه وو خوراکي مواد او آذوقه ختم سي. بالاخره د احمدشاه بابا تاکتيک بريمنه نتيجه ورکړه.

هو! همدا حساس موقعيت او نازک وخت و، چې د احمدشاه بابا پوځي لياقت او قابليت همدلته په اثبات ورسېد. وګورئ احمدشاه بابا په يو بېګانه او پردي وطن کي د څومره ستر ازموينت او چلنج سره مخامخ و. احمد شاه بابا په دې اجنبي او له هېواده لېري وطن کي چې د خپل پوځ د درې چنده لوی قوت سره جنګېدی، په دې وتوانېد چې د دښمن ارتباطي ليکي په پنځوس کيلومتريزه دايره کي له هري خوا بندي کړي او وکولای سي چې ټول هغه اکمالات. مواد او خوراکي شيان چې مرهيټه وو ته راتلل، قطع يا ضبط کړي. دا چې احمد شاه ابدالي څو مياشتي همدلته پاته سو نو ټوله اراضي او نقشه ښه ورمعلومه سوه. کله چې مرهيټانو وغوښته چې د ده اکمالاتي لاري وتړي، برعکس احمد شاه ابدالي د هغوی اکمالات بند کړل او دا د احمدشاه بابا جنګ پوهنه او برېمنه جنګي ستراتيژي ثابتوي. دا څه عادي خبره نه بلکي د يو ستر جنرال ستر پلان و. همدا علت دئ، چې د مرهيټه پوځ غاړه ورځ په ورځ خفه کېده او ساه يې بندېده. ځکه نو

هغوی هم بله چاره نه لرله بېله دې چې وتښتي یا په سخت جنګ کې ووژل سي. خو بیا هم مرهیټه مشر (سدا شیو بهاو) د جګړې په شپه شجاع الدوله ته یو پیغام ولېږی او د منځګړتوب یا بېطرفی غوښتنه یې وکړه، که نه سهار به حمله درباندې وسي. مګر شجاع الدوله دا خط بېله ځنډه احمدشاه ابدالي ته ورښکاره کړ، تر څو د مرهیټه وو له ارادې یې خبر کړي.

مرهیټانو مجبوراً حمله شروع کړه. د هغوی د جبهې کینې څواک د پیشوا د زوی (ویشواس راو) په قوماندہ چې څلوېښت زره پوځیان ورسره وو، سخته او تونده حمله وکړه. د هغوی تر شا ۲۴۰۰ پیلانو او د ابراهیم ګاردي درنې توپخانې برید پیل کړ. سخت جنګ ونښت. مرهیټه پوځیانو د (هري – هري) په نارو سره او افغاني پوځیانو هم د (الله اکبر) په لوړو نارو سره یو پر بل شدید وارونه پیل کړل. د هغوی یلغار دومره سریع او شدید و، چې د نجیب الدوله مخکښ پوځ او د عنایت خان پوځیان یې (چې جمعاً لس زره کسه وو) سخت وځپل او بیا یې د عطا محمدخان کندهاري په قوماندہ نور پنځه زره امدادي پوځیان هم د ماتې سره مخامخ کړل. تر دې وروسته شجاع الدوله د نورو لس زره پوځیانو سره مقابلې ته ودانګل خو ویې نه کړای سو، چې د مرهیټانو پوځي توپان او د هغوی د پیاوړي توپخانې د پرله پسې ګوزارونو تاب راوړي. نور نو د افغانانو د ماتېدو نښې را ښکاره سوې. خو څو علتونو د ابدالي جبهې ماتېدنه یو دم په بریالیتوب سره واړوله چې مهم یې دا دي:

الف: احمد شاه بابا ډېر ژر یو نوی جنګي او یرغلیز پلان جوړ کړ، چې زر – زر پوځیان به مسلسل حملې کوي.

ب: وزیر شاه ولي خان د خپل آس څخه راکښته سو او تن په تن جنګ یې پیل کړ او پر پوځیانو یې ناره وکړه چې: وطن مو ډېر لیري دئ، چېري ځئ، یا به یې وژنئ او یا به وژل کېږئ!

ج: یو هندو پنډت شجاع الدوله ته د مرهیټه پوځ د داخلي جبهې اطلاعات راوړل.

احمد شاه بابا چې د یوې لوړې غونډۍ له پاسه دا جګړه او د غلیم توند یلغار مشاهده کاوه، زړه یې وا نه چاوه او بېله ځنډه یې یو لوی جنګي ابتکار وکړ. ده خپل ځانې دوولس زره مجهز او زغره وړ سپاره پوځیان تر خپلې قوماندې لاندې داسې مرتب کړل، چې زر – زر پوځیان به ورمخته کېږي او سخت ګوزارونه به کوي او بیا به را شاته کېږي او پر ځای به یې نور زر پوځیان ګوزارونه پیلوي او دا سلسله به هیڅ نه قطع کېږي او په دوولس متناوبو حالاتو کې به پرله پسې ګوزارونه جاري وي. همداسې هم وسوه، یعني د ویشواس راو پوځیانو د مسلسلو ضربو څخه سرونه نه سول پورته کولای او تر پرله پسې اور لاندې وو څو چې د ډېرو تلفاتو په نتیجه کې پر شا سول. همدا وخت و، چې د افغانانو توپخانې او جنګي پیلانو هم پر

(سدا شیو بهاو، ویشواس راو، جهنکو او نور) د خپلو ګڼ شمېر پوځیانو سره ووژل سول.

مالیسن په دې رایه دئ، چي که مرهیټانو لږ نور هم ځانونه ټینګ کړي وای نو دا جنګ یې ګټلی و. ځکه چپه محاذ یې پر مخ روان و. راسته محاذ یې سخت جنګ کاوه. خو همدا مرکزي جبهه یې سره وپاشل سوه. په دې کار سره مرهیټه پوځیانو روحیات بایلل او د هولکر، شمشېر راو، ماجي سندیا په شمول پر شا وتښتېدل. ابراهیم ګاردي ونیول سو او پسي اعدام سو.



احمدشاه بابا پخپل محل کي

دښمن مرکوني ګوزارونه شروع کړل. د مرهیټه وو پیلانو د دې سخت یرغل له امله دوري هوري ځغستل او خپل پوځیان یې تر پښو لاندي کول. تر دې توندي ځپې وروسته د افغان پلي ځواکونو وار راغی او پر دښمن یې ورټوپ کړ. په دې تن په تن جګړه کي د مرهیټانو تکړه قوماندانان

افغانانو د شا له خوا په تښتېدونکو پوځیانو پسي ځغستل او هغوی یې شپېته کیلومتره تعقیب کړل. د افغانانو اسونه ډېر تیز او په یوه ورځ کي یې لس کیلومتره واټن بېله مشکله واهه. که څه هم د مرهیټانو توري او نیزې. غشي او لینده ډېر کلک او غټ وو (چي نمونې یې اوس

هم د هند په بېلابېلو موزيمونو کي موجودي دي) خو افغانانو بيا اغېزمن توپونه، توپکونه او د استعمال سرعت درلود. چي مرهټه يې په وينو ولړل. بعضي هندي آثار ليکي چي ماجي سنديا يوازي ځغستل ځو چي افغانانو ونيوی او هغه هم خپل طلايي تاج ورکړ ځو چي هغوی هم پرېښود چي وتښتي. په نتيجه کي ديرش – څلوېښت زره مرهټه ووژل سول. دوه ويشت زره يې هم ژوندي ونيول سول. پنځه سوه پيلان. پنځوس زره آسان يې افغانانو ته په لاس ورغلل او دوه لکه ګاميښي هم پر ميدان پاته سوې. د افغانانو تلفات لږ و، چي د دوولس-پنځلس زرو په حدودو کي وو. په دې ډول د پاني پت درېيمه جګړه پاي ته ورسېده او د دې سرخوږيزه ماتي له امله شپږ مياشتي وروسته د مرهټه پېشوا زاره وچاودله (زهره چاودی سو) او په هند کي د دې جابر قوت نفوذ او واک هم د تل لپاره پای ته ورسېد.

## د پاني پت د جنګ پايلي:

په معاصر تاريخ کي درې استعماري جګړې او د هغو فيصلې د لويو سرخوږيو په توګه ثبت او ثابتي سوي دي:

لومړي: مرهټه افراطيونو ته د (پاني پت جګړه).

دوهم: ناپليون ته د (واټرلو جګړه).

درېيم: برتانيې ته د (ميوند جګړه).

دا درې هغه تاريخي پېغورونه دي، چي تل به د دې نومونو په اورېدو سره د هغوی نسلونه روحاً ځورېږي.

تر کومه ځايه چي د پاني پت په جګړه پوري اړه لري، له بده مرغه د هغې پوځي برې د سياسي برې قرباني سو. د ختيځ هند کمپنۍ (يعني برتانويانو) دا جګړه په ډېر دقت او جديت سره څارله، خو کله چي مرهټه مات سول نو دوی ځکه د خوشالۍ څخه په جامو کي نه ځايېدل چي د هند قوي ترين طاقت دړې وړې سو. برتانويان خو له دې درکه بېغمه سول مګر له بل پلوه سخت اندېښمن او نا آرامه وو. هغوی په دې نه پوهېدل چي احمد شاه ابدالي د نورو افغاني پاچهانو غوندي همدلته پاتېږي او که بېرته افغانستان ته ځي (ځکه برتانويان ښه پوهېدل چي احمد شاه ابدالي څلور کاله مخکي لا د مغول واکمن دوهم عالمګير سره خپلوي کړې وه، يعني د هغه لور ګوهر افروز بانو بېګم يا زهره بېګم يې تيمور شاه ته چي دا مهال لس کلن و، په نکاح کړې وه او د پاچا خور يعني صفت بېګم يې ځانته په نکاح کړې وه)، نو ځکه د ابدالي د پاتېدو اندېښنه موجوده وه.

په هر صورت، سيکانو پر ټول هند باندي د واک چلولو وس نه درلود، مسلمانو نوابانو او هندو راجا ګانو مستقل قوت د لاسه ورکړ (هغه چي د احمد شاه ابدالي سره ولاړ وو، د هغه تابع سول او هغه چي د مرهټه وو سره ولاړ وو، ذليل سول). نو انګريزان ځکه

له دې درکه سخت پرېشان او ناکراره وو، چې یوازینی هغه طاقت چې کولای یې سو ټول هند یې اداره او کنټرول کړی وای، همدا افغاني سوبمن پوځ او د هغوی ځیرک او لایق مشر احمد شاه ابدالي و او بس.

که احمد شاه بابا هند خپل استوګنځی غوره کړی وای، نو ښایي برتانویان له هنده وتلي یا شړل سوي وای او دا هېواد به خدای خبر د څو لسیزو (حتي پېړیو) لپاره د افغانستان سره ګنډل سوی وای.

په هر حال، تر هغه ځایه چې د احمد شاه بابا په سابقه او تجربه پوري یې اړه لرل، هغه عمدتاً یو جنرال، یو قوماندان او یو پوځي سپهسالار و. تاریخپوهان په دې رایه دي، چې د مرهیټانو او افغانانو تر منځ (د پاني پت) جنګ ځکه هرومرو پېښېدونکی و، چې یوې خوا د مسلمانانو پر خلاف عملیات راپیل کړي وو. حال دا چې دا بل قدرت بیا پر هند باندي بیرته د مسلمانانو واک غوښت. احمدشاه بابا چې د دې جګړې او حملې څخه کوم هدفونه او مجبوریتونه لرل. پکښې کامیاب سو چې هغه په لنډه توګه دا دي:

الف: د ستر روحاني لاربښود شاه ولي الله دهلوي، او مسلمانو مشرانو یعني نجیب الدوله او شجاع الدوله بلني ته لبیک ویل. چې د مرهیټه هندوانو د ظلمونو څخه د مسلمانانو د ژغورلو او خلاصون لپاره یې احمد شاه بابا وربللي و.

ب: مغولي سلطنت چې د دوو پېړیو راهیسي پر هندوستان د واکمنی اصلي ښکارندوی و، د مرهیټه تېریو له لاسه ډېر کمزوره او بې صلاحیته سوی و. احمد شاه ابدالي غوښته چې مغولي واک د اضمحلال او تباهی څخه را وګرځوي او د هغه قدرت بیرته اعاده کړي.

ج: احمد شاه بابا غوښته چې لومړی پنجاب د مرهیټه اشغال څخه بیرته خلاص کړي (چې د نوي افغان دولت د عوایدو اصلي منبع وه) او بیا هندوستان او خپلو افغاني متصرفاتو ته ورپېښ خطرونه یو یو له منځه یوسي.

د: تر ټولو مهمه دا چې احمد شاه بابا غوښته په دې یرغل سره یې د مرهیټانو له خوا پر افغانستان (په تېره بیا کندهار) باندي د حملې ګواښ له منځه وړی وای. ځکه مرهیټانو پر کندهار د پوځي یرغل اراده لرله.

و: احمد شاه بابا هیڅکله د هندوستان د نیولو یا استعمار تکل نه درلود، چې د پاني پت تر فتحې وروسته دا حقیقت عملاً ثابت هم سو. ابدالي برعکس غوښته چې د افغانستان نوی هېواد او د هندوستان لرغونی هېواد ټېنګ دوستان او ملګري وي او ځکه یې د چارو واګې بیرته هندیانو ته وسپارلې، او په خپله د خپل ټول طاقت او بریمن پوځ سره بیرته هېواد ته ستون سو.

دا ټوله هغه هدفونه وو، چې احمد شاه بابا د پاني پت د جګړې او سوبې څخه حاصل کړل او په جګه غاړه ترې رخصت او خپل ټاټوبي ته ستون سو. خو ځیني عیني

عوامل موجود وو، چي ناوړه نتايج يې رامنځته کړل، لکه:

**لومړي – ځاني عوامل:**

په دې معنا چي شهزاده سليمان د احمد شاه بابا مشر زوی و، خو پر ځای يې شهزاده تيمور خپل وليعهد وټاکی، حال دا چي د ده ښې لاس يعني وزير شاه ولي خان د سليمان خُسر و، او دغه کار وروسته لوی جنجالونه او مخالفتونه ايجاد کړل، چي ابدالي دولت يې له دننه خوړمن کړ. يا دا چي تيمور شاه د ډېرو افغاني او غير افغاني خوانينو زوم کول او د هغه د ګڼو اولادونو له خوا وروسته د ترېګنيو او جاه طلبيو له امله د ابدالي دولت پايې لړزېدل او بالاخره په نړېدو محکومېدل.

**دوهم – کورني عوامل:**

په دې معنا چي د خپلو تکړه ملګرو مثلاً نور محمد خان عليزي او نورو سره د اختلافاتو پای ته نه رسېدل او ځو ځله هند ته د پوځي مأموريت څخه ډېر ژر راستنېدل يا يې پر نيمايي پرېښودل، چي دې عواملو دولت له دننه کمزوره کړ. ځيني تاريخپوهان په دې عقيده دي، چي د ابدالي همدغو پوځي مأموريتونو پر کورنيو اختلافاتو سرپوښ ايښی و، ايښي که پوځ پر کور مسلسل موجود وای، د دوی په عقيده ښايي ډېر بغاوتونه پېښ سوي وای.

**درېيم – سياسي عوامل:**

په دې معنا چي د سيکانو راټوکېدونکی ځواک په عام ډول او د برتانويانو استعماري ځواک هم په خاص ډول جدي نه و نيول سوی. په بل عبارت: د يوه پرغليزه روحيه او د بل درغليزه رويه او د هغه احتمالي خطر هيڅ نه و درک سوی. مشهور برتانوی ډګروال او تاريخ پوه ماليسن ليکي، چي احمدشاه ابدالي "د سيکانو تهديدونه او آينده خطرونه سنجولي او درک کړي نه وو. په مجردي يو کال وروسته هغوی بيرته لاهور او ورپوري سيمي ونيولې. دی هم بيا راغی او هغوی يې وشړل. خو دی لا په سرهند کي و، چي اطلاع ورته راغله چي په کندهار کي ښورښ پېښ سوی دئ".

همدا علت دئ، چي احمدشاه بابا په ډېر تلوار افغانستان ته وخوځېد. په ډيلي کي يې د دوهم عالمګير مغولي واکمن زوی (عالي ګوهر) د پاچا په حيث اعلان کړ. خو څنګه چي هغه دا مهال په بنګال کي د انګريزانو سره اوسېدی، نو د هغه زوی (ميرزا جوان بخت) يې د هغه په غياب کي د نايبِ السلطنه په حيث کښېناوه. نواب شجاع الدوله يې صدراعظم او نجيب الدوله يوسفزی يې هم د جنګ وزير (سپهسالار) مقرر کړ او پخپله افغانستان ته ولاړ.

ځيني هندي تاريخپوهان ادعا کوي، چي د ابدالي همدا تلواري ستنېدو دوه لوی زيانونه پېښ کړل:

لومړي دا چي افغانستان ته لويه

بدمرغي ور پېښه سوه، او دوهم دا چې هندوستان په وړيا توګه انګريزانو ته سوغات کړه سو. سيکانو افغاني متصرفات په پنځو کالو کې يو يو بيرته ونيول او انګريزانو هم پر هندوستان باندې خپلې استعماري منګلې ډېر ژر ټينګې کړې.

**څلرم - سوقياتي او اقليمي عوامل:**

په دې معنا چې د احمد شاه ابدالي پوځي مأموريتونو مسلسل جريان درلود. پوځ يې د خورا ساړه محيط څخه خورا تاوده محيط ته (او يا هم برعکس) په تګ راتګ کې و، چې دغه کار څو منفي تأثيرات وښندل:

الف: د هوا حالاتو، بارانونو، ډکو سيندونو او سړو تودو څپو به هغوی پرله پسې ناروغ او له جنګي فعاليته اچول.

ب: تر پوځي عملياتو وروسته به ډېر ژر بيرته کندهار ته راغلل چې پوځيان به نور هم ستړي او هلاک سول.

ج: پوځ چې به يوې خوا ته ولاړ، شا ته به ښورښ پېښ سو او چې شا ته به راغی نو وړاندې به ښورښ پيل سو.

وګورئ کله چې احمد شاه ابدالي او پوځ يې په ۱۷۶۲ کې د سيکانو څخه د لاهور او متباقي پنجاب د بيرته نيولو لپاره وخوځېد، دی لا په سرهند کې و، چې په کندهار کې د بلوا اطلاع ورته راورسېده. دا مهال سخت بارانونه وو. سيندونه ټول غاړې غاړې بهېدل او هيڅ پلونه هم نه وو، حال دا چې ابدالي بايد د خپل پوځ سره ډېر ژر کندهار ته رسېدلی وای. نو ځکه مجبوراً مخ پر ستليج وخوځېد او د هغه ځايه بهاولپور او بيا مُلتان، ديره اسمعيل خان او د ګومل د غاښي څخه غزني ته ورسېد. وګورئ د دې سفر په شروع کې ګرمي وه خو په پای کې يې ساړه و. دې حالت ډېر پوځيان ستړي او پسې ناروغه کړل او ګڼ شمير يې د دې ناروغيو څخه مړه سول. ابدالي د متباقي پوځيانو سره پايتخت (کندهار) ته په ډېره ستړيا او عجله سره ورسېد. دغه ټول اطلاعات د ده سيالانو (يعني سيکانو) ته رسېدل او هغوی نور جرئت اخيستی او بيرته به يې ټولې سيمې ونيولې. د متصرفاتو دغه لاس پر لاس کېدل او د پوځيانو مسلسل سوقيات هيڅ نه قطع کېدل څو چې احمد شاه بابا پنځه کاله نور سوقيات ونه کړای سول او وروسته د پزي په سرطان مبتلا سو او د پارسيانو د ځپلو لپاره يې تيمور شاه او نصيرخان بلوڅ ولېږل څو چې په ۱۷۷۳ کې پسې وفات سو.

په هر صورت، د پاني پت له دې خونړۍ جګړې څخه هر لوری ګټمن سو لکه د پنجاب سيکان او د ختيځ هند انګريزان. خو دوو هغو اصلي خواوو ستر زيان وکړ، چې په دې جګړه کې يو د بل سره مستقيماً جنګېدل لکه مرهيټان او افغانان (او د دواړو ملګري). مرهيټان د افغانانو له خوا دړې وړې سول خو افغانان بيا د احمد شاه ابدالي د زوی د استراحت طلبيو او د لمسيانو د قدرت طلبيو او سياليو

قرباني سول. په بل عبارت، د پاني پت د جنګ يوه ناوړه او منفي نتيجه دا وه، چي په هندوستان کي د مرهټه وارثانو او په افغانستان کي د ابدالي وارثانو د آينده پاى له همدې ځايه راپيل سو. په دې ډول د پاني پت پوځي برى د سياسي برى قرباني سو.

هو! د زرګونو افغانانو سرو وينو د پاني پت پر سره ميدان سور رنګ وشيندى. د هغوى قربانيو او سربښندنو خو افغانستان او هندي مسلمانان د تباهي او بربادۍ څخه وژغورل مګر پايلو يې د دوى حق ادا نه کړ. د هغوى ارواحو په ډېر حسرت او غم سره د خپل سوبمن پوځ سره (تر بيا ليدو!) خداى په اماني وکړ. د هغوى د بدنونو حجرات نن د پاني پت د خاوري په ذره ذره کي نغښتي دي. د ټولو شهيدانو ارواح دي ښاد او ياد دې يې تلياد وي.

هغه مأخذونه چي په دې ليکنه کي مي استفاده ورڅخه کړېده، دا دي:


۱. Historical Dictionary of India
By: Surjit Mansingh
New Delhi
۱۹۹۸

۲. History of Afghanistan, to the Outbreak of the War of ۱۸۷۸
By: George Bruce Malleson
London
۱۸۷۸

۳. Advanced Study in the History of Modern India ۱۷۰۷ - ۱۸۱۳
By: Jaswant Lal Mehta
New Delhi
۲۰۰۵

۴. BABUR-NAMA
Translated by: Annette Susanneh Beveridge
Reprinted: ۱۹۷۹
New Delhi

۵. A Comprehensive History of Medieval India
By: P. N. Chopra, B. N. Puri, M. N. Das, A. C. Prathan
New Delhi
۲۰۰۳

٦. India's Historic Battles: From Alexander the Great to Kargil
By: Kaushik Roy
New Delhi
۲۰۰۴

۷. History of Modern India ۱۷۰۷ A.D. to ۲۰۰۰ A.D.
By: Radhey Shyam Chaurasia
New Delhi
۲۰۰۲

۸. Dictionary of Indo-Persian Literature
By: Nabi Hadi
New Delhi
۱۹۹۵


nsamad۵۷@hotmail.com

# د باچا خان د مبارزو

## سیاسي او ټولنیزې لاسته راوړنې

لیکوال
عبدالنافع ثنا

د باچا خان په اړه بې شمېره لیکنې په پښتو، اردو، انګرېزي او د نړۍ په نورو ژبو کې سوې دي. خو تر کومه ځایه چې ما لوستې دي نو ټولې د هغه بیوګرافي په ځان کې رانغاړي. که څه هم د هغه بیوګرافي پخپله د هغه د اند او میراث بیانوونکې وي خو زه په دې لیکنه کې د باچا خان د ژوند له جریاناتو او بیوګرافۍ څخه تېرېږم او غواړم په مشخص ډول هغو لاسته راوړنو ته اشاره وکم، چې ده د خپلو مبارزو په مټ په سیاسي او ټولنیز ډګر کې د خپل اولس او د ټولې سیمې دپاره په لاس راوړې دي.

**د باچا خان د مبارزو سیاسي لاسته راوړنې:**

انګریزان د شمال غربي سرحد د پټو اسنادو په ۳۰۸ پاڼه کې داسې کاږي:

"تر ۱۹۳۰ پورې ټولې هغه چارې چې موږ غوښتې. تر سره سوې. روسیه مو پر شا کړه، په کابل کې آرامي سوه او پر پولو امنیت ټینګ سو. په دې ترڅ کې یو تن چې عبدالغفارخان نومېږي. راوپاڅېد او هره خوا اړودوړ او ناکراري جوړه سوه".



د هند د نیمي وچې د آزادۍ غوښتنې په غورځنګ کې د باچاخان د رول اهمیت له همدې یوې جملې څخه په ډاګه کېږي. د دې مانا دا ده، چې تر ۱۹۳۰ پورې انګرېزانو خپل د خیتې اچونې ټول پلانونه بشپړ کړي وو او په سیمه کې یې د سرکښۍ غورځنګونه نژدې یو مخ ځپلي وو، چې په دې توګه د انګریزانو په وړاندې د مقاومت کومې اندېښمنوونکې څپې شتون نه درلود. پر همدې مهال د خان عبدالغفار خان راښکاره کېدنه یوه مړژواندي مقاومت ته د نوي ژوند ورکولو په مانا وه، چې انګریزانو یې هم پخپله پورتنۍ څرګندونه کې اعتراف کړی دئ. "د هند د نیمي وچې د تاریخ د ثبتولو پر مهال به یوازې د ګوتو په شمار کسان خلکو ته په نظر ورسي، چې له ځان سره یې د اورېدلو وړ خبرې درلودې، چې په دې ډله کې یو هم د باچان غوندې وتلی شخصیت یادولای سو". دا هغه اعتراف دئ، چې د هند د آزادۍ د غورځنګ نامتو څېرې، د مهاتما ګاندي د عدم تشدد ټینګ ملګري او د هند پخواني لومړي وزیر جواهر لال نهرو د باچا خان په حق کې کړی دئ. نهرو ځکه په دې اعتراف مجبور دئ، چې که د انګریزي استعمار په وړاندې د شلمې پېړۍ له پیل څخه د آزادۍ غوښتنې د سیاسي خوځښتونو نوي راپیل سوي لړۍ ته پام واړوو، نو د باچاخان د خدایي خدمتګارو تحریک هغه عامل و، چې په مټ یې کانګرس د انګریزانو په وړاندې خپل دریځ په خورا لوړه کچه غښتلی کړ او همدا د خدایي خدمتګارو او کانګرس تړون و، چې انګریزان یې په ېېره کې واچول. پر ۱۰ نومبر ۱۹۳۰ چې دا مهال د باچا خان تحریک ځان را ښکاره کړی و، د هند لپاره د انګرېزانو نائب الحکومه (وایسرای) لارډ ارون (Irwin) د هند په چارو کې برتانوي وزیر ته په یوه لیک کې کاږي:

"هسي خو دا يوه کوچنۍ سيمه ده مگر ډېره مقاومه ده، زه يې هر وخت په اندېښنه کې اوسم او باور لرم چې ته به يې هم په اړه فکرمند يې".

دا يې د پښتونخوا سيمه ورته ښوولې ده. د دې سيمې خلکو هم په هنديانو او هم په انگرېزانو کې د تشدد، وژنې، جهالت او بدوي افکارو له امله شهرت درلود. ځکه نو انگرېزانو د دې خلکو د رام کولو لپاره بشپړه دوديزه تابيا کړې وه. په دې مانا چې په دې سيمه کې د انگرېزانو په مقابل کې د هر ټوپک پورته کوونکي کس په مقابل کې لس چنده دفاعي او ځپونکي ځواک د مجهزو وسلو سره يو ځای شتون درلود. د دې ترڅنگ انگرېزانو د خانانو او ملکانو د خوشالولو او د هغوی د وفادارۍ د گټلو لپاره د نقدي انعامونو تر څنگ د خان بهادر او نواب په څېر القابو لورول د وسيلو په توگه په کار اچولي وو. انگرېزانو هيڅ تمه نه درلوده چې په دې سيمه کې دې هم يو سياسي تحريک راپيدا کېږي. ځکه نو دوی يو خو د سيمې د طبيعت د زيږوالي له امله او بل د سياسي مشر او غمخور د نه شتون له کبله دا منطقه له نور هند څخه جلا د ډېرو ظالمو او خپلسرو وحشي قوانينو له لارې اداره کوله، چې له مخې يې هر پوليس ځانته فرعون و او خلک يې کړول. د انگرېزانو زړه ځکه له دې سيمې څخه بې غمه و، چې د دوی په گومان د شوني ناکرارۍ د ځپلو لپاره يې د ظالمو قوانينو او پوځي حضور په بڼه ټول وقايوي تدابير نيولي وو. په داسې يو حالت کې د باچا خان د خدايي خدمتگارو د تحريک رامنځ ته کېدل چې خپله مبارزه يې له سياسي لارو چارو څخه په کار اخيستلو پر مخ بېوله، يوه ډېره حيرانوونکې خبره وه او دا داسې څه وو چې له انگريزانو سره يې د علاج لپاره هيڅ تابيا نه وه. د انگريزانو سخته اندېښنه له لانديني پېښې څخه هم معلومولای سو. کله چې مهاتما گاندي د لومړي گردي مېز د کنفرانس لپاره لندن ته روانېږي، نو باچا خان ته وايي چې د هند د بهرنيو چارو او کورنيو چارو سکرټران ورسره د ليدني لپاره لېواله دي او له هغوی سره دي ووينې. پر همدې اساس کله چې دی د بهرنيو چارو له سکرټر مستر هاول سره ويني، هغه په خبرو کې ورته په ډاگه کوي:

"زموږ او پښتنو په منځ کې خو ډېرې ښې اړيکې وې. دا څه چل وسو او زموږ په منځ کې دا نفاق چا رامنځ ته کړ؟"

د خبرې مفهوم دا دئ چې انگريزانو داسې گومان نه کاوه، چې پښتانه به هم کله دونه منظم کېږي او د انگريزانو په مقابل کې به د يوه مطرح مبارز ځواک په توگه د ځان راڅرگندولو جوگه کېږي. له دې بحث څخه دې نتيجې ته رسېږو، چې که چيرې له کانگرس سره د خدايي خدمتگارو تړون نه وای، نو د کانگرس هلو ځلو به کوم د پام وړ پايله نه وای درلودلې. دا خبره باچاخان پخپل قلم داسې لیکي:

"کانگرس خو د شپېتو کالو راهيسې د آزادۍ اخيستلو لپاره په جدوجهد لگيا و خو انگرېزانو ورته پوره آزادي څه چې نيمگړې آزادي هم نه ورکوله، مگر کله چې پښتانه ورسره په دغه جنگ کښې ملگري شول او پښتنو په قصه خوانۍ، ټکر، اتمانزو، کوهاټ، هاتي خېلو او ميرويس کښې قربانۍ ورکړې او دغه شان زموږ د قبايلي علاقې غيرتي پښتنو دې پښتنو سره د هندوستان د آزادۍ په لاره کښې غزاگانې وکړې، د انگرېزانو توپونو او ټانکونو ته يې خپلې سينې ډال کړې او د دوی مخې ته لکه غر

ودرېدل نو انګرېزانو هله د هندوستان آزادۍ ته غاړه کېښېښوده".

همدا د باچا خان خارق العاده شخصیت و، چې په ډېره لږه موده کې يې د برتانوي هند يوه ډېره مهمه سيمه د غفلت له خوبه راويښه کړه او د هند د آزادۍ غوښتني له مړژواندو غورځنګونو سره يې د يوه ژوندي او پياوړي آواز په توګه مله کړه، چې بالآخره يې په ټول هند کې د آزادۍ د لاسته راوړني هيلي راټوکولې. کله چې زه وايم د برتانوي هند يوه مهمه برخه يې د غفلت له خوبه راويښه کړه، د لاندي پېښي په ذکر کولو به وضاحت ورکړم. باچا خان ليکي، چې د صوابۍ تحصيل د دورې پر مهال مانيرۍ ته پر لاره و، چې يو سپين ږيري سړي ورته وويل:

"باچا خانه! زه خو نن ايله پوه سوم چې پېرنګی هم زموږ په شان بنيادم دئ".

مانا دا چې پښتنو ته انګرېز د يو خارق العاده مخلوق په شان معرفي و او دوی دا فکر کاوه، چې له هيواد څخه د انګرېز ايستل د خوب او خيال خبره ده. همدا خبره د دې سيمي د غفلت پر خوب دلالت کوي. کله چې باچاخان د کوهاټ پر دوره و نو حکومت ورپسي څلور افسران وګومارل، چې د کوهاټ ډپټي کمشنر، پوليس کپتان، د سيمي مجسټريټ او د سرحدي (بارډر) پوليسو يو انګرېز وو. باچا خان ليکي:

"په يو کلي کي زموږ جلسه وه. دوی هم هغي جلسې له راغلل. ما خلکو ته تقرير کولو، چې موږ خدايي خدمتګار يو او موږ د خدای دپاره د دې ملک



او قام خدمت ته ملا تړلې ده، دا ملک او دا قوم خو ستاسو هم دی، تاسو کښې ځوک سته چې زموږ سره په دې خدمت کې شریک سي نو یو پاڅېږو چې زما نوم ولیکه، بل پاڅېږو چې زما نوم ولیکه. دا د بارډر پېرنگی ما ته راڼژدې سو او ماته یې ووې [په دې خلکو دې څه چل کړی دی، دا به زموږ د یوه سپاهي نه دومره یرېدل چې د هغه په مخکښې به یې کلمه نشو وئیلی، اوس دا دی موږ ولاړ یو او د دوی په زړه کښې هیڅ یره نشته لگیا دي خپل نومونه د خدایي خدمتگارۍ د پاره پیش کوي".

د باچا خان مبارزو پښتنو ته دا احساس ورکړ، چې دوی هم د انگرېز، پنجابي او نورو قومونو په څېر قوم دي او خدای ورته د هستوگنې او ودې لپاره خپله برخه ځمکه ورکړې ده. هغه پښتنو ته په خپلو ویناوو کې ویل:

"دا ننۍ دنیا د قامولۍ دنیا ده، که قوم سوئ نو ستاسو دنیا به هم آباده سي او ستاسو آخرت به هم آباد سي".

له دې وړاندې پښتنو د مومند، ختک، اپریدي او په داسي نورو نومونو ځان معرفي کاوه. د دې خبرې د اثبات لپاره دا ښه دلیل دئ، چې د خدایي خدمتگارو تر رامنځ ته کېدو مخکي هم پښتنو په تېره بیا د قبایلي سیمو هستوگنو د انگرېزانو په مقابل کې جهاد کاوه خو هغه په دې بڼه و، چې کله به وزیر په جگړه کې وو نو مسعود به لاس تر زنې ناست وو او کله چې به مسعود په جگړه کې وو نو مومند او اپریدي به په خبر نه وو، چې له همدې امله دې مبارزو کومه د پام وړ لاسته راوړنه و نه درلوده. د دې سره په څنگ کې پښتنو تر خدایي خدمتگارو مخکې د خپل قام د ښېرازۍ او د قامي خپلواکۍ لپاره مبارزه نه وه کړې او که به یې کله په وسله واله مبارزه لاس پوره کاوه نو هغه به هم د سیمه ایزو ملایانو او روحانیونو د فتواوو له برکته وو او دا مبارزه به د قامولۍ نه بلکي د اسلام په نامه مبارزه وه او د جهاد په نیامت به راوتل. کله چې باچا خان صحنې ته راځي، نو په پښتنو کې د اسلامي جذبې په څنگ کي چې د دوی د فطرت برخه ده، د قامولۍ احساس هم ورگډ سو او موږ وینو چې کله په ۱۹۳۰ کې باچا خان زندان ته اچول کېږي او پښتونخوا د انگرېزانو تر وحشي ظلمونو لاندې نیول کېږي. نو د ضلعو تر څنگ د اېجنسیو پښتانه ټول د اسلامي جذبې سره سره د یوه زورور قامي جوش په بدرگه په یوه خوله د انگرېزانو مقابلې ته راوزي. په پښتنو کې د نیشنلزم او یا خپل ځان ته د قوم په حیث د قایلتوب د نشتوالي یو بل ثبوت دا دئ، چې صحنې ته د ده تر راتگ وړاندې پښتنو په خپله ژبه باندې هیڅ لیکل او لوستل نه کول او داسي یې انگېرل چې گواکي پښتو یوازې د پټې او د حجرو د بنداړونو ژبه ده او د لیکنې او رسمیاتو لپاره یې حیثیت ډېر ټیټ دئ. باچا خان خپله په دې هکله لیکي:

"د تعلیمیافته کسانو سره به مې چې د ژبې په باره کې خبرې وکړې، راته به یې ویل چې پښتو لا د څه ژبه ده؟ په دې کښې علم نسته. پښتو کې څه دي؟"

ده غوښتل د ژبې راژوندي کول د نیشنلزم د یوه مهم عنصر په توگه را منځ ته کړي او په دې توگه پښتنو ته د شعوري حرکت احساس ورکړي. دی لیکي:

"چې کوم قوم ته خپله ژبه سپکه شي نو سپک شي او چې ورڅخه ورکه شي نو ورک شي".

په دې برخه کې یو لوی گام چې ده پورته

کړ، د پښتون میاشتنۍ خپروني پیلول و، چې سیاسي، ټولنیز او ادبي توکي یې خپرول. همدا راز یې د خدایي خدمتګارو د وزارت په لومړۍ دوره کې د نورو اصلاحاتو تر څنګ پښتو ژبه په ابتدایي زده کړه کې لازمه وګرځوله.

د باچا خان د مبارزو یوه بله لویه سیاسي لاسته راوړنه پښتنو ته د ډیموکراسۍ

کومه د پام وړ رایه نه لري. خو باچا خان د خدایي خدمتګار په تنظیمولو پښتنو ته دا وروښوول چې یوازي خان، ملک او فیوډال د پرېکړي صلاحیت نه لري بلکي د ټولني هر فرد ولو که هر څومره غریب او نادار هم وي، د ټولنیزو مسایلو په اړه په پرېکړه کولو کې د خان او ملک برابره رایه لري. د دې خبري د لا روښانتیا لپاره به د باچا خان خبره رانقل کړم.



وربښېژندل دي. که څه هم په پښتنو کې د جرګو او مرکو دود له پېړیو راهیسي دود دئ او هغه هم د اولسواکۍ نمونه ګڼلای سو خو د موضوع تو پیر په دې ځای کې دئ چې د پښتنو په دودیزو جرګو او مرکو کې نسبي ډیموکراسي تمثیلېږي خو باچا خان پښتنو ته د واقعي ډیموکراسۍ لاره ورپه ګوته کړه. نسبي ډیموکراسي په دې مانا چې په جرګو کې د خانانو، ملکانو او فیوډالانو خبره مهمه وي او د ټولني غریبه او ناداره طبقه په جرګو کې

هغه وایي:

"زموږ د چارسدې یو خان و، هغه به وې چې زه په داسي یوه ډله کښي نه شریکېږم د کومي ډلي مشر چې بنجاری او قصاب او شاخېل وي. زموږ مشري په خانۍ نه وه، په خدمت وه. زموږ د اتمانزو جرنیل شاخېل و. زیارتګل نوم یې و. د دې ماتحت ډېر خانان، اربابان، میاګان او ملایان وو. د دوی حکم به یې د تنخوادارو نوکرانو په شان منلو".

د خدایي خدمتګارو تحریک د صوبې،

ضلعې، تحصیل او بیا په کښته سطحو باندې جرګې درلودې. ټولې مهمې پریکړې به په دې جرګو کې د ټولو ملګرو په سلا او رایه باندې فیصله کېدې. له دې فیصلو څخه یوه مهمه هغه یې د صوبې د کچې په جرګه کې له کانګرس سره د ائتلاف پرېکړه وه، چې د خدایي خدمتګارو د مهمو مشرانو هر یوه خپله باچا خان، میا احمدشاه او عبدالاکبر په نه شتون کې تر سره سوه. د هغه د مبارزو نهایي موخه په پښتني ټولنه کې د یوه ډیموکراټ نظام رامنځ ته کول و. په دې اړه د هغه اند داسې و:

"دا ملک زموږ د ټولو پښتنو دی نو موږ یو سړی نه خان کوو. زموږ به دا کوشش وي چې ټول خانان کړو او داسې حکومت به جوړوو، چې هغه کښې مساوات وي".

د پاکستان له جوړېدلو وروسته هم باچا خان خپلو مبارزو ته دوام ورکړ او همدا د ده برکت دئ، چې تر نن ورځې پورې د پښتون ملتپالنې په مبارزو کې ساه چلېږي. له ون یونټ څخه د غربي پاکستان د خلاصولو تر شا هم د باچا خان مبارزو لوی رول لاره، چې په دې توګه یې پښتونخوا، بلوچستان او سیند د پنجاب له ډېرې بربنډې او مستقیمې باداري څخه څه نا څه وژغورل. باچا خان د مسلم لیګ د جابرانه سیاست په مقابل کې چې پکښې د پنجابیانو اکثریت و او واک یې د هغوی په لاس کې و، د درېدنې جرئت وکړ او د ون یونټ په ګډون د نورو غیر عادلانه پالیسیو پر خلاف د مبارزې لپاره یې د ۱۹۵۷ په جولای کې په ډاکه کې له عبدالحمید بوشاني، ګ. م. سید او میا افتخارالدین سره وکتل او نیشنل (ملي) عوامي ګوند یې رامنځ ته کړ. په دې لړ کې نوموړي په کلونو کلونو د مسلم لیګ د استعمارچیانو په لاس د زندان ورځې شپې هم تېرې کړې. څنګه چې جنرال یحیی خان قزلباشي ون یونټ مات کړ، نو باچاخان ته یې، هغه مهال چې دی په کابل کې و، د خپل سفارت له لارې زېرې راولېږی چې باچا خان هم په همدغه شپه د کابل د راډیو له لارې د دې کار هرکلی وکړ او د یحیی خان څخه یې مننه وکړه.

د پورته خبرو سره سره، دا باید هېر نه کړو چې باچا خان له آره یو ټولنیز مصلح و او دی خپله دا وایي چې د انجمن اصلاح افاغنه، زلمو جرګه او خدایي خدمتګار خوځښتونه یې د پښتنو د ټولنیزو مرضونو د معالجې په موخه جوړ کړي وو خو دا د پښتنو له ټولنیزې بیدارۍ څخه د وخت د حکومت بېره وه، چې د دوی د فعالیتونو په مخنیوي پسې یې راودانګل او دوی مجبور سول چې د دفاع لپاره سیاسي لارو چارو ته مخه کړي. باچا خان لیکي:

"د بدیشي (بهرني) حکومت مثال د غله وي، چې د کور خاوند را ویښ شي نو بیا غل کله ټینګېدای شي؟"

انګرېزانو کله منلای سوای چې باچا خان دې د خپلو اصلاحي فعالیتونو له لارې د کور خاوند راویښ کړي؟

**ټولنیزې لاسته راوړنې:**

لکه چې مخکې وویل سول، باچا خان له آره یو ټولنیز مصلح و. ده غوښتل چې د خدای د مخلوق خدمت وکړي او هغه ناخوالې چې ټولنه ورسره مخ ده، له منځه یوسي. دی لیکي چې د خدای د مخلوق د خدمت احساس ورته هلته پیدا سو، چې کله په پېښور کې د ایډاورډ په یادګاري عالي ښوونځي کې په زده کړه بوخت و. د ده په وینا، ریو وګرم (Rev Wigram) د دوی د ښوونځي سر ښوونکی و.

نوموړی او يو ورور يې چې په مشن روغتون کې يې کار کاوه، د انګلستان د يوه لوی شخصيت زامن وو، چې مشن (خدمتي ټولني) ته يې بخښلي وو. نوموړي ښوونکي چې به کله معاش واخيست، نو د پيښور پر زده کوونکو به يې د مرستي په توګه ووېشه. باچا خان ليکي:

"ما کښي چې د انسانيت، قوم پرستۍ، وروری، عزيز ولۍ او وطن دوستۍ او د خدای د مخلوق د خدمت کومه جذبه پيدا شوي ده، په هغې کې زما د دې استاد وګرم ډېر لاس دئ".

باچا خان نه غوښتل د يو شعاري او تيوريک مصلح په توګه په ټولنه کې ځان مطرح کړي، بلکې د مهاتماګاندي د هغه شعار په څېر چې وايي، زما ژوند زما پيغام دئ، خپل ژوند يې خپلي ټولني ته د سرمشق په توګه وړاندي کړ او د سمون عملي درس يې ورکړ. هغه په پيل کې د ټولني د معالج په توګه په پښتنو کې د پرتو هغو ناوړه مرضونو د تشخيص چاره پيل کړه، چې تر دې وخته هيڅ چا پام نه و ورته کړی او نه هم چا په دې اړه د نقد جرئت کولای سوای. په دې مرضونو کې ناوړه دودونه لکه سخات، د ښځو سپک ټولنيز حيثيت، د پيسو په مقابل کې د ډېر عمر لرونکو پېغلو نجونو ودول، په ودونو کې د نجونو پر سر پيسې اخيستل، په ودونو کې تر اندازې زيات لګښتونه او جهالت، تشدد او نور وو، چې پر دې ټولو پديدو باندي ده په خپل کتاب (زما ژوند او جدوجهد) کې تبصره کړې ده. هغه د ناوړه رواجونو اصلاح له خپله ځانه راپيل کړه. کله چې يې لومړی واده کاوه، نو خسر ئې يارمحمد خان ورځخه ولور وانه خيست. دی ليکي چې د ده په ګومان يارمحمد خان لومړی خان و، چې د ښځې پر سر يې پيسې وانه خيستې. په پښتنو کې رواج و، چې ښځو د سړو سره پر يوه دسترخوان ډوډۍ نه سوای خوړلای. باچا خان دا رواج هم مات کړ او د ده په وينا چې کله به مېلمانه نه وو، نو له ښځو سره به يې پر يوه دسترخوان ډوډۍ خوړله. همداراز د ښځو له تعليم سره سخت حساسيت شتون درلود، خو ده خپله لور په ښوونځي کې شامله کړه، چې په دې کار سره يې ان خسر هم ورځخه خوابدی سو. په پښتنو کې دا رواج دئ چې که ښځه مړه سي نو مېړه بله ښځه کوي او اکثراً چې کله مېړه مړ سي نو ښځي ته د بل مېړه د کولو اجازه نه ورکول کېږي. باچا خان دا دود هم داسي مات کړ، چې خپلي ښځي ته يې وصيت وکړ، چې که دی مړ سو، نو سمدلاسه دي ځانته مېړه وکړي. يو بل ناوړه دود دا دئ چې د شپې هر څومره چې ناوخته مېلمه کوم کور ته ولاړ سي نو بيا په هغه شپه باندي ښځي راکښېني او د مېلمنو لپاره ډوډۍ تياروي. باچا خان خدايي خدمتګارانو داسي اصول وضع کړل چې له مخي يې يا بايد ناوخته د چا کره ولاړ نه سي، که ناوخته پر چا پېښېږي نو چې څه تيار وي هغه به خوري او که يې کور ته ناوخته څوک ورځي نو چې څه تيار وي، هغه به ورته ږدي. د باچا خان د خدايي خدمتګارۍ د مبارزو په لړ کي يوه لويه لاسته راوړنه، چې د يادولو وړ ده، دا ده چې هغه ښځي په سياسي پروسه کي راګډي کړې او هغه داسي چې ښځو به په سياسي جلسو کي ګډون کاوه. دی وايي:

"زما دا عقيده وه، چې يو قوم هله ترقي کولای سي چې د هغوی سره ښځي اوږه پر اوږه لکه د ګاډۍ دويمي پايي رواني شي". په دې توګه هغه دود ته ضربه ورکول سوه چې په عامه ځايونو کي او په مهمو پرېکړو کي يې د ښځو له شتون سره حساسيت درلود.

په هره ټولنه کې ډېر داسي ناوړه دودونه سته چي د وخت په تېرېدلو سره که څه هم ډېر زیانمن وي، هغې ټولنې ته ډېر درنښت پیدا کوي. همداراز ډېر داسي دودونه وي چي ټولنه غواړي ځان ورڅخه خلاص کړي خو د بدوي ټولني هغه قشر چي دودیز مشرتوب یې په لاس کي وي لکه خان، ملا، پیر، میا او نور، د دې کار اجازه نه ورکوي او پخپل ټول توان د ټولني په نظام کي د تغیر راوستني په مخ کي خنډونه ایجادوي ځکه دی په دې باوري وي چي که د ټولني په دودیز نظام کي بدلون راځي، نو هغه حیثیت چي دی یې په دې نظام کي لري، ضربه ویني. په داسي ټولنو کي پرمختګ ډېر سخت کار وي تر هغه وخته امکان هم نه سي موندلای تر څو چي مروج ټولنیز چوکاټ مات نه کړل سي. په داسي حالت کي که چیري په ټولنه کي یو سترګور څوک پیدا کېږي چي هغه دې ټکي ته متوجه کېږي او غواړي د دودونو په ایجاد او له منځه وړلو سره د ټولني په عمومي نظام کي بدلون راولي، د ټولني له سخت غبرګون سره مخامخ کېږي، په تېره بیا د هغه قشر له غبرګون سره چي په طرح سوو بدلونونو کي د ځان لپاره په یوه یا بله بڼه زیان ویني. په داسي حالت کي که چیري مصلح (بدلون راوستونکی) د بدلون راوستني لپاره په ربښتیا ولاړ وي، نو یو لړ فداکاریو ته غاړه ږدي او کله چي دا کار وکي، نو په پایله کي یې د ټولني د بېلابېلو نفوذ لرونکو قشرونو لکه ملا، پیر، خان او نورو د مقاومت سره سره، خپل هدف ته یا پخپل ژوند کي او یا له مرګه پس رسېږي. په دې فداکاریو کي د مادي امتیازاتو د بایللو تر څنګ د ټولنیز حیثیت قرباني کول هم راځي. د ټولنیز حیثیت قرباني کول په دې مانا چي کېدای سي بدلون راوستونکی شخص د ټولني د حاکم قشر لکه ملا او خان په لمسون په ټولنه کي منفور وګرځي. د بېلګي په ډول به پښتني ټولنه راواخلو. که چیري کوم څوک په کلیوالي سیمو کي د ښځو د آزادی، برابری او د هغوی د تعلیم خبره په عملي توګه راپورته کړي، نو کېدای سي حاکم قشر پر دې کس باندي د کافر او یا منافق فتوا صادره کړي. دلته نو دا خبره باید درک کړو، چي په ټولنه کي د مصلح او بدلون راوستونکي رول لوبول د هر چا د وس خبره نه ده او غیر معمولي اشخاص وي چي د دې کار وړتیا لري. باچا خان همداسي یو غیر معمولي شخص و. هغه د دې ناوړه دودونو پر خلاف هغه مهال عملي اقدام وکړ، چي دا دې سل کاله وروسته یې هم څوک په عملي توګه له اقدام کولو څخه د ټولنیز حیثیت د بایلني له بېري ځان ګوري. باچا خان ته ټولنیز حیثیت مانا نه درلوده ځکه هغه چي کوم کار کاوه، د خدای لپاره یې کاوه او د خدای د مخلوق د ښېګڼي لپاره یې کاوه نه د دې لپاره چي خپل شخصیت په ټولنه کي مطرح کړي او یا دا چي خلک ورته په درناوي قایل سي. د باچا خان رول هغه وخت لا زیات مهم او د ستاینې وړ ګرځي چي د ده د اصلاحي پروګرام په مقابل کي نه یوازي د ټولني دودیز حاکم قشر لکه ملا، خان او نواب ولاړ وو، بلکي دوخت حکومت یې هم تر ټولو زیات او پخپل ټول ځواک په ډېره متشدده توګه په مخالفت کي ولاړ و. باچا خان نه یوازي هغه اصلاحي پروګرامونه پر مخ بېول چي د حاکم قشر له فزیکي غبرګون سره به مخ کېدل بلکي له هغو پروګرامونو څخه یې هم مخ نه اړاوه چي د ټولي ټولني له رواني غبرګون او برید سره به مخ کېدی. د بېلګي په توګه، باچا خان د دې لپاره چي له پښتنو څخه دا ذهنیت ورک کړي چي ګواکي تجارت او سوداګري یوازي



د هندوانو کار دئ، پخپله مځکه کي يې د کوړي منډئي راو ايستله چي په دې توګه به يې تربورانو وړپوري خندل او ملنډي يې وربا‌ندي وهلې چي ګواکي غفار خان د بنیاګانو کار پيل کړی دئ، خو ده به وروسته هغوی ته قناعت ورکړ، چي ګټه يې د دوی ځو چنده ده او دا چي سوداګري يوازي د هندوانو کار دئ، دا يوه بې مانا خبره ده. باچا خان وائي:

"زموږ کار د خدای د مخلوق دپاره و، زموږ پکښي ذاتي غرض نه و بلکه ذاتي مو پکښي نقصانو".

باچا خان د پښتني ټولني د راويښولو او په هغوی باندي د خپل حق پېژندلو لپاره تر ټولو اړينه وسيله دا وګڼله چي بايد دا خلک زده کړه وکړي. په همدې موخه يې لومړی د

ترنګزو د حاجي صاحب سره د مدرسو يوه لړۍ راپيل کړه، چې د لومړۍ نړيوالې جګړې پر مهال د ده له نيول کېدلو سره سم وترل سوې. له دې پس يې په ۱۹۲۰ کې د آزادو ښوونځيو يوه لړۍ راپيل کړه. لومړنۍ هغه يې پخپل کلي اتمانزو کې پرانيسته چې لومړني زده کوونکي يې د ده زامن عبدالغني او عبدالولي وو او ورسره سم دريم تن د کلي د ګاډيوان قادري کاکا زوی و. په دې توګه هغه په ټولنه کې د طبقاتي وېش سره خپل مخالفت څرګند کړ. د دې ښوونځيو دقيق شمېر خو معلوم نه دی خو ويل کېږي چې اويا (۷۰) بابو ته رسېدې او په سلګونو زده کوونکي يې درلودل. دا په پښتنو کې د سياسي شعور د پيدا کولو لومړنۍ هڅې وې چې باچا خان راپيل کړې.

په دې ځای کې به د باچا خان د يوې ستري ټولنيزې لاسته راوړنې په توګه په پښتنو کې د سياسي شعور د راويښېدنې خبره ياده کړو. دې خبرې ته به داسې وضاحت ورکړو چې تر خدايي خدمتګارو وړاندې په سرحد صوبه کې د کانګرس ګوند فعاليتونه روان وو خو غړي يې دومره په لږ شمېر کې وو چې د صوبائي کمېټې د جوړولو لپاره يې خپل ټاکلی تعداد نه سوای پوره کولای. نو ځکه د سرحد صوبې د کانګرس ګوند چارې د پنجاب په کانګرس پورې تړلې وې. د دې تر څنګ محمد علي جناح هم سرحد صوبې ته د مسلم ليګ د عاملو لپاره راغلی و خو ناکامه ستون سوی و. له دې څخه دا خبره په اثبات رسېږي چې په پښتنو کې دا مهال سياسي شعور شتون نه درلود، خو کله چې خدايي خدمتګار رامنځ ته کېږي، نو د سياسي فعالينو شمېر سلګونو زرو ته رسېږي. ډېره جالبه دا ده چې د همدې خدايي خدمتګارو له برکته د رامنځ ته سوي سياسي شعور څخه په ګټه اخيستلو مسلم ليګ هم وکولای سوای ځانته په سرحد صوبه کې ځای پيدا کړي. دا ټول د باچا خان د کرشمه اي استعداد څرګندوی دي. هغه ليکي:

"سياسي شعور په يو قوم کې د اسمانه نه راځي او چې په کومو قومونو کې د سياسي شعور خلک پيدا سي نو خپل قوم پسې وګرځي، هغوی ټول سياسي شعور پيدا کړي".

کله چې سياسي شعور نه وي، نو دا له سره امکان نه لري چې څوک دې د آزادۍ په مانا پوه سي. باچا خان د خپل قوم رندو احساساتو ډېر ځوراوه. د هغه د مبارزو يوه لويه موخه دا هم وه، چې خپل قوم د آزادۍ په رښتينې مانا پوه کړي او په څنګ کې دوی ته په ګوته کړي چې د اسلام او د هغه په چوکاټ کې د آزادۍ په مانا پوره پوره پوهېدل د جهاد تر ټولو لومړی شرط دئ.

همدا د باچا خان په هلوځلو د رامنځ ته سوي سياسي شعور برکت و، چې په سرحد صوبه کې نه يوازې د بېلابېلو پښتني قبايلو تر منځ بلکې د مسلمانانو، هندوانو او سيکانو تر منځ هم ډېر ځواکمن يووالی رامنځ ته سو. د دې خبرې اثبات په دې کېدای سي چې په بنو کې د باچا خان د يوې لويې جلسې ټول انتظام هندانو وکړ.

**باچا خان او عدم تشدد:**

په ټولنه کې د يوه ناوړه سياسي او يا ټولنيز نظام د را نسکورولو لپاره دوې لارې په کار اچول کېدای سي. يوه د تشدد لاره او بله د عدم تشدد هغه. عدم تشدد د باچا خان د سياسي نبوغ په برکت له لومړۍ ورځې د ده په ذهن کې وده کړې وه. هغه د قرآن کريم له

لوستني دا درک کړې وه، چي تشدد له معقوليت سره په واټن کي دئ. ډېر خلک په دې اند دي چي ګواکي باچا خان د عدم تشدد په تګلاره کي د مهاتما ګاندي پيرو او يا شاګرد دئ. دا خبره صحت نه لري. کله چي باچا خان د خدايي خدمتګار تحريک رامنځته کوي نو په هغه مهال کي نه خو يې د مهاتما ګاندي سره د نژدې ليدلي و او نه يې هم د هغه آثار لوستلي وو. پر دې خبره باچا خان پخپله اعتراف کوي، چي تر دې مهال ده نه له ګاندي جي او نه يې هم د هغه له آثارو سره آشنايي درلوده. حال دا چي د خدايي خدمتګارو د تحريک په تحليف نامه کي د عدم تشدد آثار له ورايه ښکاري. د تحليف په يوه برخه کي په ښکاره ويل سوي دي، چي خدايي خدمتګار به د تربورګلوۍ په هيڅ يوه شخړه کي ځان نه ښکېلوي. د دې تر څنګ داسي وايي:

"زه به خپل مال، آرام او ځان د خپل قوم د خدمت او د خپل هيواد د آزادۍ په لاره کي قربان کړم".

خو هيځ ځای دا نه وايي چي زه به د دښمن په قتل او فزيکي کړونه پسي راوځم. د باچا خان د ژوندليک يو ليکوال J.S. Bright په دې اند دئ، چي که د عدم تشدد په فلسفه کي د روحاني غرقېدني له زاويې ورته وګورو، نو بايد باچا خان ته د سرحد ګاندي نه بلکي ګاندي ته د هند خان ووايو. هغه په دې خاطر چي د عدم تشدد فلسفي روحانيت په باچا خان کي تر ګاندي جي په څو ګونو پياوړی و. باچا خان خپل پيروانو ته امر کاوه چي له عدم تشدد څخه په کار اخيستلو مبارزه وکړي ځکه د انګرېزانو سره د تشدد د ځيني لپاره وسله خو سته مګر د عدم تشدد د ځيني لپاره هيڅ لاره چاره ورسره نسته. همدا لامل و چي انګرېزانو، که څه هم خدايي خدمتګارو

هيڅ د تشدد ډک عمل ته لاس نه و اچولی، پر هغوی باندي د سخت تشدد ډک ظلمونه وارد کړل څو بالآخره دا ډله په تشدد باندي مجبوره کړي او دوی وکولای سي په متې يې خپل تشدد نور هم پياوړی کړي او بالآخره د خدايي خدمتګارو تحريک له منځه يوسي خو انګرېزان په دې هوډ کي تر پايه بريالي نه سول. که موږ وګورو، کله چي په ۱۹۴۲ کي د ګاندي جي له خوا د (هند پرېږده) تحريک پيل سو، نو په هند کي ډېر د تشدده ډک عملونه وليدل سول خو خدايي خدمتګار خپل د عدم تشدد پر پاليسي تر پايه ټينګ ودرېدل. باچا خان وايي، چي ما ګاندي جي ته د هغه تر خوشي کېدني وروسته وويل چي وګوره، هغه پښتانه چي تاسو يې متشدد خلک بولئ، د عدم تشدد پاليسي ماته نه کړه او هنديانو ماته کړه. نو ګاندي جي په جواب کي وويل چي عدم تشدد د غيرتمنو خلکو کار وي او پښتنو په دې کار سره خپل غيرت ثابت کړ. باچا خان خپلو پلويانو ته داسي درس ورکاوه:

"زموږ د صبر جنګ دئ، موږ د وهلو او ښکنځلو بدل نه اخلو".

د عدم تشدد مانا يوازي دا نه ده، چي که هر ظلم کېږي نو په وړاندي دي يې سړی چپ پاته سي او غبرګون دي نه ښيي بلکي عدم تشدد هم د تشدد په څېر د جګړې خپل تکتيکونه لري. لومړی دا چي د عدم تشدد پيرو د ناوړه سياسي او يا ټولنيز نظام د بدلون لپاره کوښښ کوي، چي خپل مقابل لوری په دلايلو قانع کړي. که چيري هغه په دلايلو نه قانع کېږي نو پر ځان باندي د تکليف تېرولو له لاري هغه دې ته مجبوروي چي پر حقيقت باندي د غور کولو لپاره ځان چمتو کړي. په دې کي د تزکيوي اعمالو لکه روژې، د نه همکارۍ اعمال لکه هرتال، مظاهره او نور. د

غیر نظامي نافرمانۍ اعمال لکه د قوانینو ماتول او بالآخره د ټولنیز بدلون لپاره د یوه رغنده پروګرام د وړاندي کولو تکتیکونه په کار لوېږي. باچا خان پر ځان باندي د تکلیف تېرولو له لاري د بل قانع کول په دې توګه واضح کوي:

"بل هله خوشالولای سې چي پر ځان تکلیف تېر کړي". هغه د عدم تشدد د دې عنصر عملي کول په دې سره ثابت کړ، چي د خپل ۹۸ کلن ژوند ۳۵ کاله یې په زندان کي تېر کړل او د ټیټ پوړو پولیسو له لاسه یې زندان او جلوسونو کي بېلابېلي سختي ربړوني وزغملې. همدا د ګاندي جي د ستیاګره د فلسفې چي بنسټ یې د هندویزم، بودیزم او جینیزم پر مقدسو کتابونو ولاړ دئ، بنسټیز توکي هم جوړوي. ګاندي جي دې نتیجې ته د دې درو مذهبي کتابونو د لوستني او په څنګ کي یې د لیو تولستوی د (د خدای پاچهي په تا کي دننه شتون لري) او د جان رسټکین د (تر وروستي پوري) آثارو د لوستني په برکت ورسېد، خو باچا خان په دې آثارو کي تر هغه مهاله چي ده د عدم تشدد عملي مباره پیلوله، یو هم نه و لوستی. ده یوازي قرآنکریم لوستی و، نبوي سیرت یې څه نا څه مطالعه کړی او یا اورېدلی و او د انبیاوو کیسې یې اورېدلي وې. همدا توکي کافي وو، چي د ده په اند او ژوند کي د عدم تشدد فلسفه د روحاني مزو په مټ پیاوړې کړي. باچا خان د عدم تشدد ټول تکتیکونه په کار واچول او د خپلي موخي لپاره یې د دې پر ځای چي وسله والي مبارزې ته لاس واچوي، خپل ځان یې په تکلیف کي واچاوه او د خپل ځان ربړونه یې د دښمن په مقابل کي د یوې ډېري خطرناکي او تباه کوونکي وسلې په توګه ثابته کړه. باچاخان خپله لیکي چي د ده زندانیتوب هغه وسیله وه، چي خدایي خدمتګار تحریک یې د ټولني هري دروازې ته ورساوه. د دې د ثبوت لپاره دا کافي ده، چي وو ایو په ۱۹۳۰ کي د باچاخان تر زندانیتوب او پر سرحد صوبه د انګرېزانو د تشدد څخه وړاندي د خدایي خدمتګارو شمېر د ۱۲۰۰ په شاوخوا کي و، خو کله چي دا جریانات رامنځ ته سول نو شمېر یې په ډراماتیکه توګه تر ۵۰۰۰ واوښت. باچا خان د تشدد او عدم تشدد توپیر په دې الفاظو کوي:

"در اصل عدم تشدد یو طاقت دئ څرنګه چي تشدد یو طاقت دئ. د عدم تشدد هم دغه شان فوج دئ لکه څنګه چي د تشدد دئ خو د عدم تشدد وسله تبلیغ دئ او د تشدد وسله ټوپک دئ. عدم تشدد په خلکو کي محبت پیدا کوي، همت پیدا کوي او جرئت پیدا کوي او تشدد په خلکو کښي نفرت پیدا کوي او وېره پیدا کوي او بزدلي پیدا کوي".

هغه زیاتوي:

"تشدد آسان دئ او په دې لاره تلل هم آسان دي او عدم تشدد ډېر ګران دئ او په دې لاره تلل هم ډېر ګران دي، یو سړي له د پړق جواب کښي پړق ورکول آسان کار دئ خو پړق زغمل ګران کار دئ".

د عدم تشدد فلسفیان په دې نظر دي چي حقیقت معلومول د انسان د وس خبره نه ده. پر همدې اساس کېدای سي یوه خبره چي یوه انسان ته حقیقت ښکاري، ښایي بل انسان له بلي زاویې ورته وګوري او هغه ته حقیقت ښکاره نه سي. په دې ځای کي که چیري په بل انسان باندي د خپل اند د منلو لپاره د تشدد څخه کار واخیستل سي، مانا دا چي د حقیقت معلومولو لاره مو بنده کړه ځکه د حقیقت د کره معلومولو لپاره باید د مقابل لوري اند ته

هم غور و نیسو چي هغه موضوع ته له کومي زاویي ګوري. پر دې اساس نو عدم تشدد د یوه معقول نظام د رامنځته کولو اغېزناکه او ګټوره لاره ده. د هند پېژندل سوي شاعر رابندرانات ټیګور عدم تشدد ته د (تمدن) په حیثیت ورکولو قایل دئ. همدې ټکي ته په پام سره باچا خان په پښتنو کي د خپلمنځي جګړو او تربورګلویو سره خپل سخت نفرت په ډاګه کړی دئ ځکه د تشدد دغه ناوړه دود ورته په پښتنو کي د تمدن په وړاندي د خنډ په توګه تر سترګو سوی دئ. دا چي باچا خان د عدم تشدد د پیرو په توګه له ځان سره د مثبت ټولنیز بدلون د رامنځ ته کولو لپاره کوم رغنیز پروګرام درلود، د هغه له افکارو څخه له ورایه ښکاري. هغه وایي:

"اقتدار خراب شی نه دئ، موږ هم چي کوشش کوو، د اقتدار دپاره ئې کوو خو اقتدار د حکومت دپاره نه، د خدمت د پاره".

دا په ټولنه کي د مشروع حاکمیت د رامنځ ته کولو لپاره یوه ډېره په زړه پوري نظریه ده. زموږ د ټولني ټولي ناخوالي د همداسي حاکمانو له وجي دي چي اقتدار د خپل حاکمیت او هوس پرستۍ وسیله بولي او دې ته له سره قایل نه دي، چي اقتدار هغه وخت مشروعیت پیدا کوي چي کله حاکم د خلکو خدمتګار سي.

د باچا خان د عدم تشدد اغېز دا سو، چي په صوبه سرحد کي نه یوازي په پښتنو کي ورورګلوي ټینګه سوه بلکي د هندوانو او سیکانو سره هم د مسلمانانو ورورګلوي ټینګه سوه. وایي کله چي جواهر لال نهرو په لومړي ځل د سرحد پر دوره راغلی و، نو په جلوس کي د یوه سیک خدایي خدمتګار جنډه په لاس کي وه او د تکبیر ناري یې وهلې. له همدې څخه په ټولنه کي د عدم تشدد اثرات درک کولای سو. د دې په څنګ کي همدا د عدم تشدد اثرات وو، چي په خدایي خدمتګارو کي یې بهترین نظم تامین کړی و او په ټول هند کي یې د پښتنو په اړه هغه غلط تاثر ختم کړ، چي ګواکي پښتانه یوازي ټوپک پېژني. وائي کله چي جواهر لعل نهرو سرحد ته راورسېد او په ټپسن کي یې خدایي خدمتګار په آرامۍ او نظم سره ولاړ ولیدل، چي نه یې ناري وهلې او نه یې هم بې نظمي جوړولې، نو دی په دې مجبور سو، چي ووایي: "ما ته خو د چا د ویلو اړتیا هم پېښه نه سوه، چي ګواکي موږ د شریفو پښتنو هیواد ته رارسېدلي یو".

په پورته توګه د باچا خان اند، ژوند، مبارزو او لاسته راوړنو ته لنډه کتنه وسوه. له پورته بحث څخه په جرئت سره دا نتیجه اخیستلای سو، چي باچا خان د هند د آزادۍ سرلاری دئ او رول یې تر جناح غونډي رهبرانو ډېر محسوس او د ګاندي جي غونډي رهبرانو برابر دئ او په پښتني ټولنه کي د هغه د مبارزو مثبت اثرات تلپاته پاینښت لري.

ماخذونه:

۱. زما ژوند او جدوجهد، عبدالغفار (باچا خان)، ۱۳۶۲ه ش، کابل
۲. عبدالغفار خان (انګرېزي)، ډاکټر سید وقار علي شاه
۳. Bacha Khan in Afghanistan, *Memoir by Dr. Sher Zaman Taizi, June* ۲۰۰۲, *http://www.asianreflection.com/khanafghanistan.shtml*
۴. *Introduction to Political Ideas and Ideologies, IGNOU, BDP*
۵. *فلسفه عدم تشدد اور باچا خان، اجمل ختک کشر.* www.urdunews.net

# قراني رياضي

## هرو مرو مطالعه کړئ

قال الله تعالی:

قُل لَّئِنِ ٱجْتَمَعَتِ ٱلْإِنسُ وَٱلْجِنُّ عَلَىٰٓ أَن يَأْتُوا۟ بِمِثْلِ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانِ لَا يَأْتُونَ بِمِثْلِهِۦ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا ﴿٨٨﴾ [الإسراء ١٧ : ٨٨]

ژباړه: اې پیغمبره! دوی ته ووایه که انسانان او پیریان ټول د دغه قرآن غوندي کتاب د راوړلو لپاره سره را غونډ سي، نو رابه یې نه وړلای سي. که څه هم ټول یو د بل مرستندویان سي. (صدق الله العظیم).

په دې وروستیو کي د کندهار د پیاوړي او وتلي لیکوال ښاغلي ډاکټر نثار احمد صمد یو بل ډېر په زړه پوري او پر قرآن کریم باندي په غوڅه توګه یقین راوړونکی اثر (قراني رياضي) له چاپه راووت.

دغه کتاب چي (۴۰۸) مخونه لري په زر ټوکه کي په ۱۳۸۸ لمریزکال د کاناډا له ټورنټو ښخه د افغان رسالې د مسئولینو له خوا خپور سوی دئ.

زه تر هر څه دمخه د دې ګټور اثر د خپرېدو له امله ګران ډاکټر صاحب نثار احمد



لیکوال: عبد المالک همت

صمد ته د زړه له کومې مبارکي وړاندې کوم، د افغان رسالې له مسئولینو څخه هم مننه کوم چې د دغسې پیاوړو لیکوالو د آثارو خپرولو ته یې له هیواده لیرې د پردېسۍ په نړۍ کې د همت ملا تړلې ده. لوی څښتن دې د دې کتاب لیکوال او خپروونکو ته په دواړو جهانو کې اجر ورکړي. دا په پښتو ژبه کې په دې موضوع کې لومړنی اثر دئ، چې زه باور لرم د هیوادوالو لوستې طبقه به زیاته ګټه ځنې واخلي او بالاخره به په دې د دین په هکله د بې پروایۍ په دور کې د قرآن کریم پر حقانیت باندې د ډېرو د غوڅ او کلک یقین لامل سي.

د کتاب موضوع چې د قرآن کریم د عددي او ریاضي اعجازونو، عجایباتو او اریانوونکو اړیکو، نظم او ځانګړنو او د قرآن د متضادو، متناسبو او متناظرو کلمواو تورو د تکرار د تناسب او داسې نورو مسایلوپه هکله ده واقعاً په زړه پوري ده او لوستونکی قانع کوي او اړباسي یې چې په غوڅه توګه ومني چې د دغسې اریانوونکو او مثبتو ځانګړنو درلودونکی کتاب قرآن کریم هرو مرو او بېله شکه د لوی څښتن له خوا وحي سوی کلام دئ او په دې سپېڅلي کلام کې د بشر هیڅ دخل نسته او نه کوم تحریف پکښې راغلی او نه پکښې کېدای سي. پر دې سربېره په دې کتاب کې څه نور اریانوونکي رموز هم ځای سوي دي، چې د کتاب ارزښت یې نور هم زیات کړی دئ. ما په دې موضوع کې په عربي، فارسي او اردو



ژبو کي څه مقالې او کتابونه لوستي دي، خو له څو په ګوتو شمېر پرته مي د (قرانی رياضي) په پرتله صحيح او په تول درانه نه دي موندلي. ما چي په دې کتاب کي هر څه وکتل کوم ناسم مورد مي پکښې تر سترګو نه سو. خدای تعالی دي د ډاکټر صاحب پر پوهه او قلم برکت کښېږدي څو نور دغسي ګټور آثار هم وليکي او زموږ د مطالعې تنده نوره هم په ماته سي.

دلته لازمه ګڼم چي تر هر څه لومړی د قرآن کريم د دغو اريانوونکو خبرو څو بېلګي وړاندي کړم او وروسته به د دې موضوع پر څرنګوالي او سوابقو هم څه رڼا واچوم. لومړی د دې اريانوونکو رموزو څو بېلګې:

تاسي قرآن مجيد راواخلئ او د بقره سورې په سرلوحه، يعني په پيل کي وګورئ تاسي ته به معلومه سي چي دغه سوره (۲۸۶) آيته ده. په دې توګه د دې سورې منځ يا (وسط) (۱۴۳) آيت کېږي. خو دا يوه طبيعي خبره ده. اما کله چي تاسي د دې سورې منځنی آيت، يعني ۱۴۳ آيت تلاوت کړئ تاسي ته به معلومه سي، چي په دغه آيت کي د (وسطا) لفظ راغلی دئ. نو اوس پوښتنه کېږي چي آيا د دې سورې په وسط کي د (وسط) د لفظ راتلل يوه پېښکي او تصادفي خبره ده؟ جواب به هرو مرو دا وي چي نه!

بل دا چي د قرآن کريم پيل او لومړی آيت (بسم الله الرحمن الرحيم) دئ او د قرآن کريم د عددي اسرارو ستره برخه د همدې بسم الله سره تړاو لري. دغه (بسم الله الرحمن الرحيم) نولس توري ده او د قرآن کريم ډېر څه د همدغه (۱۹) عدد سره اريانوونکی عددي تړاو لري يعني په قرآني رياضي کي چي د جمعې. تفريق او ضرب له کومي عمليې څخه څه عدد په لاس راځي هغه به هرومرو پر همدغه (۱۹) د وېشني وړتيا لري. چي دا څه عادي خبره نه ده.

په دې لړ کي تاسي وګورئ چي د قرآن د «ق» سوره د (ق) په توري پيل سوې ده او دغه د (ق) توری په دغه سوره کي (۵۷) واره راغلی دئ. چي دغه عدد د (بسم الله الرحمن الرحيم) پر تورو باندي چي ۱۹ دي په بشپړه توګه وېشل کېږي. يعني (۱۹×۳=۵۷).

عجبه لا دا ده، چي په قرآن کريم کي د لوط عليه السلام د قوم په هکله (۱۲) واره د (قوم لوط) الفاظ راغلي دي. خو په همدغه سورت (ق) کي د لوط د قوم په هکله د (اخوان لوط) الفاظ ذکر سوي دي، نه د (قوم لوط) الفاظ. دا ځکه چي که په دغه سوره کي بل (ق) هم راغلی وای نو د ټولو قافونو شمېره به (۵۸) ته رسېدلې وای او بيا به (۵۸) پر ۱۹ نه وېشل کېدلای. نو پاکي دي وي دغه لوی ښتن لره چي خپل کلام يې په دغسي نظم او ترتيب اوډلی دئ او موږ يې په دې د کفارو او د هغو د ګوډاګيانو د فتنو په دور کي په هغه وپوهولو او لا يې زموږ باور او يقين پر قرآن باندي ټينګ کړ.

درنو لوستونکو! دا خو ما په دې هکله دوې کوچنۍ بېلګې راوړلې. تاسي ته به په قرآن مجيد کي د اريانوونکي عددي نظم او تناسب د شتون او د دغه سپېڅلي کتاب د سورتونو، آيتونو، کلمو او تورو په شمېر کي د رياضي رابطې او داسي نورو خبرو په هکله ښه او بشپړ معلومات هله وسي چي د (قراني رياض) کتاب مطالعه کړئ.

ښه! اوس به د دې موضوع پر سوابقو څه رڼا واچوو. هر څونه که دا موضوع، نوې بلل کېږي او په اوسمهال کي يې تقريباً بشپړ سېړل رامنځ ته سوي دي. خو څرک يې په ډېر پخوا کي او کرښېل يې په اسلامي لرغونو

امهات الکتب کي موندل کېږي، چي کېداى سي د دې موضوع بنسټ وبلل سي.

په اسلامي ماخذونو کي دې خبرو ته ورته بحث او د ابجد د تورو د هندسي قيمتونو يا عددونو په هکله خبري د حي بن اخطب يهودي له کيسي څخه را پيلېږي. د ابن هشام د السيرة النبوية په ۲/ ۱۹۶ مخ کي او د ابن جرير طبري په تفسير، د سيوطي په الاتقان او په بيضاوي او نورو تفاسيرو کي له عبدالله بن عباس او جابر بن عبدالله بن رئاب ﷺ څخه د دغي روايت سوي کيسې لنډيز په دې توګه دئ:

يو مهال رسول ﷺ د مديني يهودو ته د البقره د سورې لومړي آيتونه، يعني: ﴿الم ذَلِكَ الْكِتَابُ لَا رَيْبَ فِيهِ﴾ تلاوت کړل. د يهودو په ډله کي حي بن اخطب د (الم) توري د ابجد په حساب وسنجول او ويې ويل: څنګه چي د الف لمبر يو، د لام دا دېرش او د ميم دا څلوېښت دئ او د دې ټولو جمله (۷۱) کېږي نو له دې څخه معلومېږي چي ستا د حکومت او امت موده (۷۱) کاله ده. نو آيا موږ د داسي پيغمبر په دين سو، چي د حکومت د پاى ته رسېدو موده يې (۷۱) کاله وي؟ بيا هغه له رسول ﷺ څخه د نورو دغسي تورو په هکله پوښتنه وکړه. رسول ﷺ د (المص) توري ورته وويل، ابن اخطب هغه د جمل په حساب حساب کړل او بيا يې ورته ويل چي نور هم سته؟ رسول ﷺ د (الر) توري ورته وويل. هغه دغه توري هم د ابجد په حساب وسنجول او بيا يې ورته وويل آيا نورهم سته؟ رسول ﷺ د (المر) حروف ورته وړاندي کړل، خو هغه تر سنجولو وروسته وويل چي ستا معامله موږ ته په سمه توګه نه معلومېږي او بيا ټول څني ولاړ سول. (د دغه روايت اسناد ښايي ضعيف وي، خو موږ دلته د استناد لپاره نه، بلکي د دې لپاره ذکر کړ، چي جوته کړو چي دغسي خبري په سيرت ابن هشام او طبري او نورو لرغونو کتابونو کي ډېر پخوا يادي سوي دي).

دغه راز د احاديثو په ځينو کتابونو کي هم داسي آثار راغلي دي، چي د دې موضوع ځينو خبرو ته ورته خبري پکښي ښکاري. د مثال په توګه د ابن خزيمة په صحيح (۲۱۷۲) د بيهقي په سنن الکبری (۲۱۳/۴) او د حاکم په مستدرک (۱۶۳۹) کي له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ، چي هغه ويلي دي چي حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه ور وبللم او راته ويې ويل چي زه ځيني صحابه راغواړم او څه پوښتني څني کوم، خو ته به تر هغو چي دوى جواب نه وي راکړى څه نه وايې. نو هغه و چي هغوى يې راوغوښتل او څني ويې پوښتل چي تاسي پوهېږئ چي رسول ﷺ فرمايلي دي چي د قدر شپه د روژې د مياشتي په وروستۍ لسيزه کي ولټوئ. نو دغه شپه د روژې د وروستۍ لسيزي په کومه شپه ده؟ له هغو څخه ځينو وويل: د دغي لسيزي په لومړۍ شپه ده. ځينو وويل: په دريمه شپه او نورو وويل: په پنځمه شپه ده. او زه پټه خوله ناست وم. نو حضرت عمر رضي الله عنه راته وويل چي ته ولي خبري نه کوې؟ ما ورته وويل: که ستا اجازه وي زه به هم خبري وکړم، خو البته زه له خپلي رايي څخه خبري کوم. هغه وويل: زه هم ستا د رايي پوښتنه کوم. نو ما ورته وويل چي د قدر شپه د روژې د لسيزي په اوومه شپه ده. ځکه لوى ښښتن د اوو آسمانونو او اوو ځمکو يادونه کړې ده، انسان يې هم له اوو پيدا کړى دئ او د ځمکي نباتات يې هم له اوو را شنه کړي دي. هغه راته وويل: ستا په نورو خبرو پوه سوم، خو په دې پوه نه

سوم چې د ځمکې نباتات يې هم له اوو را شنه کړي دي. ما ورته وويل: لوی څښتن فرمايي:

ثُمَّ شَقَقْنَا ٱلْأَرْضَ شَقًّا ﴿٢٦﴾ فَأَنۢبَتْنَا فِيهَا حَبًّا ﴿٢٧﴾ وَعِنَبًا وَقَضْبًا ﴿٢٨﴾ وَزَيْتُونًا وَنَخْلًا ﴿٢٩﴾ وَحَدَآئِقَ غُلْبًا ﴿٣٠﴾ وَفَٰكِهَةً وَأَبًّا ﴿٣١﴾ مَّتَٰعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَٰمِكُمْ ﴿٣٢﴾ (عبس: ۲۶ - ۳۲)

ژباړه: بيا مو ځمکه په عجبه توګه څيرلې ده. بيا مو په هغې کې د غلو دانې را شنې کړي دي او انګور او مېټې او زيتون (ښوون) او خرماوي او ګڼ باغونه او ډول ډول مېوې او وابښه مو ستاسې او ستاسې د څارويو لپاره پکښې کرلي دي.

چې له دغو اتو شيانو څخه اووه د انسانانو لپاره دي او اتم يې چې وابښه دي د څارويو لپاره دئ. بيا حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل: تاسې د دې کوچني هلک غوندې جواب رانه کړای سو او خبره هم همدغسې ده.

له دې څخه معلومه سوه، چې د ابن عباس رضي الله عنه د قرآن کريم په ځينو آيتونو کې د اوو د شمېرې تکرار ته پام و، چې پر ځانګړې معنا يې دلالت درلود، ځکه يې نو له هغو څخه په استنباط سره وويل چې د قدر شپه د روژې د وروستۍ لسيزې په اوومه شپه ده. له دې څخه کېدای سي، چې وويل سي چې د حضرت ابن عباس پام په دغسې نورو قراينو هم رسېدی.

بيا په را وروستو وختونو کې ځينو مفسرينو د قرآن کريم د مقطعه تورو تاويل د جمل يا ابجد د حساب (ابجد، هوز، حطی، کلمن...) له مخې هم وکړ. خو حضرت ابن عباس رضي الله عنه او نورو اسلامي عالمانو چې حافظ ابن حجر، ابن کثير او له اوسمهالو عالمانو څخه شيخ محمد عبده هم پکښې راځي ويلي دي، چې د قرآن د مقطعه تورو له مخې د مودو ټاکل او د هغو په ذريعه د پېښو او فتنو وختونه معلومول بې بنسټه او باطل کار دئ.

پر دې سربېره ځينو اولنيو اسلامي عالمانو، لکه ابن ابي الاصبع په خپل (الخواطر السوانح في اسرار الفواتح) کې، علامه زرکشي پخپل کتاب (البرهان في علوم القرآن) کې، امام سيوطي پخپل نامتو کتاب (الاتقان في علوم القرآن) کې او علامه باقلاني او زمخشري او له اوسنيو مفسرينو څخه علامه الوسي او ابن عاشور او ځينو نورو پخپلو تفسيرونو کې صرف د قرآن کريم د ځينو سورتونو د فواتحو يا حروف مقطعه وو د معجزانه اسرارو په هکله څه داسې يادوني هم کړي دي، چې دغو تورو ته يې د ابجد د تورو د حساب سره تړاو ورکړی دئ. په دوی کې ځينو دا يادوني هم کړي دي، چې د سورتونو په لومړيو کې چې کوم حروف راغلي دي، هغه په هغه سورت کې د دغو کلمو ډېر راتلو ته اشاره کوي. مثلاً علامه زرکشي په البرهان في علوم القرآن ۱/ ۱۷۰ مخ کې ليکي:

"د هري سورې په پيل کې چې هر توری راغلی دئ د هغې سورې زياتره کلمات او حروف د دغه لومړني توري مماثل دي... د سورت ق په پيل کې (ق) له دې امله راغلی دئ، چې د دې سورې په ډېرو کلمو کې (ق) راغلی دئ".

شيخ اکبر محي الدين ابن عربي هم چې يو ستر او نامتو متصوف تېر سوی دئ د فتوحات مکيه په دوهم باب کې د قرآن کريم مقطعه حروف د ايمان ځانګو ته اشاره بللې

ده. هغه وايي له ټولو مقطعه حروفو څخه (۷۸) توري جوړېږي، چې (۸) يې دلته د (بضع) (څو عددو، له درو او نهو تر منځ عددو) حقيقت څرګندوي او نبي ﷺ فرمايلي دي چې "الْإِيمَانُ بِضْعٌ وَسَبْعُونَ شُعْبَةً" (ايمان څه له پاسه اويا څانګې دئ). نو دا حروف د ايمان څانګې ياله سي.

له اوسمهالو پوهانو څخه استاد علي نصوح الطاهر په دې فکر کې سو، چې د قرآن کريم د فواتحو عددي حساب پر بنسټ د هغو سورتونو توري وشمېري چې په پيل کې يې دغه مقطعات راغلي دي. هغه خپله دغه څېړنه د يوې رسالې په بڼه له بيت المقدس څخه په ۱۹۶۰م کال خپره کړه، خو د ډېر زيار سره سره په خپل کوښښ کې بريالی نه سو.

له پورته څرګندونو څخه ښکاري، چې دا موضوع ګردسره نادره هم نه ده. خو دا يو واقعيت دئ، چې دې موضوع ته په اويايمه ميلادي لسيزه کې جدي پام د يوه مصري الاصله خو امريکا مېشتي کيميا پوه په ادعاوو سره واوښت. دغه عالم ادعا وکړه، چې تر درو کالو پر له پسې کار او له کمپيوټر څخه په ګټه اخيستنه بريالی سوی دئ، چې په قرآن کې يو ډول عددي او رياضي اريانوونکی نظم کشف کړي. هغه څرګنده کړه چې په قرآن کې د تورو او کلمو د تکرار تعداد په بشپړه سنجول سوي او حسابي توګه راغلی دئ. څنګه چې هيڅ ليکوال نه سي کولای د کتاب د ليکلو په ترڅ کې د کتاب د تورو او کلمو تکرار مراعات کړي او د متناظرو يا متضادو کلمو په منځ کې ځانګړی او اريانوونکی نظم او تناسب راونغاړي، نو دا ښکارنده شاهدي ورکوي چې قرآن کريم د لوی څښتن له خوا وحي سوی کتاب دئ او هيڅ تحريف نه پکښې راغلی دئ او نه پکښې کېدلای سي.

په دې هکله د (آخر الساعه) په نامه د مصر نامتو مجلې يو رپوټ خپور کړ، چې د نړۍ په بېلو بېلو برخو کې د ټولود اريانتيا وړ وګرځېد او په ډېرو رسنيو کې يې انعکاس وموند. په دې توګه د نړۍ د مسلمانانو د خوشاليو او شور او زوږ د ولولوڅپې په باډاسکو سوې.

بيا رشاد خليفه په ۱۹۷۲م. کال د (۱۹، په قرآن کې عددي شمېره) تر سرليک لاندې يوه مقاله خپره کړه او وروسته يې خپل کتاب QURAN: VISUAL PRESENTATION OF THE MIRACLE په امريکا کې چاپ کړ. (دغه کتاب په ۱۹۸۳م. کال د (معجزة القرآن الكريم) په نامه په بيروت کې د دار العلم للملايين له خوا خپور سو). د دې خبر خپرېدو نه دا چې مسلمانان خوشاله کړل، بلکې ډېر پوهان يې وهڅول چې په دې هکله نوري پراخې څېړنې وکړي او د قرآن د دې اعجاز، اسرارو او رموزو په باب مقالې او کتابونه خپاره کړي.

خو له بده مرغه څنګه چې د اسلام دښمنان او د هغو ګوډاګيان وبېرېدل، چې په دې سره د اسلام او قرآن حقانيت نور هم په قطعي توګه څرګندېږي او د دوی ګټو، دريځونو او موخو ته ستر خطر متوجه کېږي نو يې له ډول ډول لارو پر رشاد خليفه باندې سياسي کار وکړ، هغه يې د ډېرو پيسو او د اريزونا د ايالت په توسان ښار کې د جايداد او ودانيو او مسجد په ورکولو سره وغولاوه او داسې خبرو کولو ته يې وهڅاوه، چې د مسلمانانو په سترګو کې بې اعتباره سي او د قرآن د عددي اعجاز په اړه يې خبري باطلې او

ناسمي وبرېښي. نو هغه و، چې ادعا يې وکړه چې په قرآن کريم کې تحريف سوی دئ او د التوبه د سورې دوه وروستي ( ۱۲۷ او ۱۲۸ ) آيتونه له قرآن څخه نه دي. دغه راز هغه ادعا وکړه، چې د لوی څښتن له کتاب پرته نور (د رسول الله [ص] احاديث، سنت او قدسي حديثونه) نعوذ بالله افترآت دي او د لوی څښتن د دښمنانو په دين پوري تړلي دي. بيا يې پخپله سليقه قرآن کريم په انګرېزي ژبه وژباړی او بالاخره يې د پيغمبری ادعا وکړه او څرګنده يې کړه، چې په ۱۷۱۰هجري قمري(۲۲۸۰م) کال قيامت کېږي. چې له دې امله په ټولو مسلمانانو کې د کرکې او شديد نفرت وړ وګرځېد او پای د ۱۹۹۰م. کال د نومبر پر ۳۱مه سهار وختي په هغه مرکز کې، چې ده د خپل انحرافي دعوت لپاره جوړ کړی و، د نامعلومو کسانو له خوا په چاړه ووژل سو. خدای خوار کړي په دې بې عقليو سره خپل ګټلی نوم او د خپل دغه ستر کشف اجر بايلود او د کفارو د خطاايستو او شيطنت له امله يې دواړي خطا سوې.

له بله پلوه په ۱۸۴۴م. کال په ايران کې د انګرېزي او روسي ښکېلاکګرانو او د صهيونيزم د نړيوال غورځنګ په هڅه، ټونګ او لګښت، له تشيع مذهب څخه يو نوی راوتلی منحرف او باطل دين د يوه سړي له خوا چې مرزا محمد علي رضای شيرازي ( ۱۸۱۹ – ۱۸۴۹) نومېدی تاسيس سو، چې بيا دغه سړي پر ځان باندي د (باب) نوم کښېښود او دغه نوی دين يې د مسلمانانو د عقايدو د فاسدولو او د هغو د يووالي د له منځه وړلو او د اسلام د دښمنانو د خدمت او د هغو د ګټو د ساتلو لپاره په کار واچاوه. د ده تر مرګ وروسته د ده زوی مرزا حسين علي بها د هغه ځای ناستی سو. د دغه دين پيروانو د بسم الله الرحمن الرحيم (۱۹) تورو ته په پاملرنه دغه عدد مقدس وباله. يو کال يې (۱۹) مياشتي او هره مياشت يې (۱۹) ورځي وټاکلې. دغه راز دوی تر دې کچې انحراف وکړ، چې ويې ويل پر دوږخ باندي نولس ملايکي نه دي موکلي، بلکي د بسم الله الرحمن الرحيم همدغه (۱۹) توري پر راګرځېدلي دي. چې په دې سبب دوږخ څوک نه سوځي. په دې توګه دغه مذهب له اسلام څخه خپله لار بېله کړه او اوس دغه دين د اسلام پر ضد د امريکا، لوېديځ او يهودو له خوا ملاتړ کېږي.

څنګه چې له يوې خوا له دغه (۱۹) عدد څخه د باييانو يا د بهايي مذهب د پيروانو د بدي استفادې خبري مشهوري سوې او له بلي خوا د دې خبري لومړني کاشف منحرف سو او له بله پلوه نن مهال په دغسي مسايلو کي بې باوري زښته زياته سوې ده او پر دې سربېره څه نور لاملونه هم سته، نو په اسلامي نړۍ کي ځينو عالمانو د دې مسايلو په اړه د شک او ترديد دريځ خپل کړ، ان د دې خبرو پر ضد را پاڅېدل، هغه يې سر تر پايه، سمي او ناسمي ټولي غلطي او ګمراه کوونکي وبللې او د هغو په نقد او رد کي يې کتابونه او بېلي بېلي مقالې وکښلې.

د رشاد خليفه پېژندګلوي:

رشاد خليفه د ۱۹۳۵م. کال د نومبر پر ۱۹مه د مصر په کفر الزيات ښار کي وزېږېدی. د قاهرې د عين الشمس پوهنتون د کرني له پوهنځي څخه يې په ۱۹۵۷م. کال ليسانس تر لاسه کړ. په ۱۹۵۹م. کال د ماسټری او دکتورا د سندونو د تر لاسه کولو لپاره امريکا ته ولېږل سو. په ۱۹۶۱م. کال يې د اريزونا له پوهنتون څخه ماسټري تر لاسه کړه. په ۱۹۶۴کال يې د حياتي کيميا په څانګه کي د

دکتورا سند تر لاسه کړ او وروسته د امریکایي استوګن په توګه ومنل سو، بیا د ملګرو ملتونو د یونسکو په څانګه کي د کارپوه په توګه په کار وګومارل سو. دغه دنده یې تر ۱۹۷۱م.کال پوري پر مخ بوتله. خو وروسته یې د امریکې د اریزونا د ایالت د توسان په ښار کي د مسجد د امام په توګه تبارز وکړ. کله چي د هغه په فکر او کړو وړو کي د ښوییدني او انحراف نخښې ولیدل سوې، نو د دغه جومات د لمونځ کوونکو سره په شخړو او لانجو اخته سو او پای یې د خپلو انحرافي ادعاوو د تبلیغ لپاره بېل او ځانګړی مرکز تاسیس کړ. څنګه چي هغه د میلونونو ډالرو خاوند سو، نو شخصیت یې نور لا هم تر پوښتني لاندي راغی او د اسلام د دښمنانو سره د ناروا اړیکو د ټینګولو ګومانونه پر زیات سول. رښتیا هم دا ده چي له بده مرغه زیاتره دغسي کسان د اسلام د دښمنانو، دغو دوه پښو انسان مخو شیطانانو د توطئو او غولونو په دې توپاني هوا او فضا کي خپل اسلام، نېک چاري او ښه نوم نه سي ساتلای او د مدیاتو او پیسو ټولولو او په کوټیو کي اوسېدو او کش او پش او عیش او نوش تر اغېزي لاندي راځي. په رشاد بدمرغه هم دغه شوډنګ وسو او په ثمن بخس دراهم معدوده یې خپل خوږ اسلام او ګټلی نېک نوم خرڅ کړ. لویه خدایه! پخپل فضل او مرحمت مو له دغسي ابتلا څخه وساتې.

د دکتور خالد نعیم په نامه یو لیکوال د مصر د المختار الاسلامي مجلې د ۱۹۹۰کال د جولای د میاشتي په ګڼه کي وایي، چي د رشاد پلار عبدالحکیم خلیفه د صوفیه وو له سترو شیوخو څخه و او د شاذلیه طریقي پیرو و. کله چي په ۱۹۸۷م.کال رشاد مصر ته ولاړ، یو مهال یې پلار د قرآن د تحریف او د پیغمبری

له ادعا څخه د راګرځېدو په موخه نصیحت ورته وکړ، خو هغه باندي په قهرسو او داسي یې وواهه چي راڅملېد او له ټپ څخه یې وینې په بهېدو سوې. رشاد امریکې ته په تېښته بریالی سو او پلار یې څو اوونۍ وروسته وفات سو.

په هر ترتیب رشاد خلیفه خو مرتد سو او بهایان (۱۹) عدد ته په تقدس قایل دي. د حق او باطل جګړه ده له ډېر پخوا څخه را روانه ده. څوک د کفر خوا نیسي څوک د اسلام. دا چي ځینو اسلامي عالمانو هم د قرآن د عددي اسرارو خبري ناسمي بللي دي، خدای دي وکړي چي د دوی دغه دریځ هم د کوم مطلب له مخي نه وي.

د قرآن کریم د عددي اړیاتوونکو اسرارو او رموزو په اړه په ریاضي ثابت واقعیتونه نه د کفارو په توطئو اړه لري، نه د رشاد په ارتداد او نه د بهایانو په عقایدو او نه هم د ځینو نورو په ناسمو خبرو او تردید. څه چي حق او د اسلام په ګټه دي هغه به منو او څه چي باطل او ناسم دي ردوو به یې. لوی څښتن فرمایي:

{ فاما الزبد فیذهب جفاء واما ما ینفع الناس فیمکث في الارض} (سورة الرعد ۱۳: ۱۷).

ژباړه: کوم چي ځګ دئ هغه به ګټي له منځه ځي او کوم شی چي د انسانانو لپاره ګټور دئ هغه په ځمکه کي پاته کېږي.

موږ ته لوی څښتن عقل او شعور راکړی دئ. موږ کولای سو چي حق او باطل د عقل. پوهي. اسلامي احکامو او مثبته علومو او تجربو او د پوهانو په مرسته سره بېل او معلوم کړو. موږ نه باید له ربړو حقایقو او بیا د قرآن کریم له اسرارو او ثابتو او اړیاتوونکو رموزو څخه د منحرفو کسانو د ښوییدني او کفارو د ترطئو یا د ځینو د مخالفت له امله سترګي پټي کړو او که داسي وکړو بېره ده چي د ترټني

او عذاب مستحق سو. ځکه د قرآن کریم له راته څرګندو سوو نوو حقایقو څخه به مو په شعوري توګه ډډه کړې وي، چي دا ښه نه ده. نوغوره او سمه خبره دا ده چي د قرآن کریم عددي اعجاز او اسرارو ته په سړه سینه د عقل په سترګو کاته وکړو. په دې هکله ډېرو اسلامي جیدو او تقوا لرونکو عالمانو او متدینو پوهانو او څېړونکو د زیاتو ستړیاوو په ګاللو او د کلونوکلونو څېړنو په تر سره کولو سره موږ ته دغسي ډېر اسرار پخپلو کتابونو او مقالو کي راسپړلي او په ګوته کړي دي. په تېره په دې هکله د ښاغلي ډاکټر نثار احمد صمد نسبتاً جامع او په ښه او آسانه اسلوب لیکل سوی کتاب په څرګنده په ډاګه کوي او په ریاضي حسابونو جوتوي چي په قرآن کریم کي عجیب او ریانوونکي رموز سته. صرف په مطالعه اړه لري.

دا خبر منلې ده، چي له دې پلوه چي قرآن د لوی څښتن کلام دئ، د هغه په معجزه بللو کي هیڅ تردید نسته. خو د مومنانو د باور د لا پیاوړتیا، غافلانو ته د یادوني، پر منکرانو باندي د اتمام حجت او د حقیقت پلټونکو ته د لارښووني لپاره د قرآن کریم د عددي اسرارو را سپړل د لوی څښتن د دغه کلام د اعجاز د بې پایه سمندر څخه یو څاڅکی هرومرو باله سي. زه باور لرم چي که څوک د اسلام په دین نه وي مشرف او قرآن د لوی څښتن د رښتیني کلام په توګه نه مني که د (قرآني ریاضي) کتاب په غور مطالعه کړي حتماً به قرآن کریم د لوی څښتن د برحق کتاب په توګه ومني. که څوک د اسلام او قرآن د حقانیت په هکله څه شک لري او یا یې په سترتوب نه وي خبر، حتماً یې شک به بشپړ یقین بدلېږي او د لوی څښتن د کلام په سترتوب به خبر سي او یقین لرونکی مسلمان به پر خپل یقین او ایمان نور هم خوښ او خوشاله سي. درسته ده چي قرآن د لارښووني او هدایت کتاب دئ، خو هدایت ته رسېده هم په اسبابو کېږي او دا داسي یو بحث باله سي چي په اوسني عصر کي د هدایت او قناعت ورکولو له اسبابو څخه یو سبب دئ.

دا هم منلې ده، چي په دې باره کي به له ځینو څخه له ښه نیته د بشریت په تقاضا سهو، غلو، مبالغه یا افراط سوی وي. خو دا د دې معنا نه لري چي موږ د دغو کسانو او نورومحققینو سمي او درستي خبري هم د رشاد د باطلو خبرو په لیکه کي ودروو، په دروغو یې لېکه کړو او بد رد ورته ووایو او حق کتمان کړو. د باطل پالو باطلي خبري بېلي دي، د مسلمان عالم سهو او خطا بېله او حق او حقیقت (په قرآن کي د ۱۹ هندسې او داسي نورو ارقامو حقیقت) بېل دئ. که موږ دغسي ونه کړو او حق او باطل او درست او نادرست ټول سره ومروړو او ګډوډ یې کړو او په یوه پله کي یې کښېږدو او ټولو ته په ناوړتیا وګورو نو د لوی څښتن د دې حکم څخه به مو ډاګیز مخالفت کړی وي:

{یا أیها الذین آمنوا کونوا قوامین لله شهداء بالقسط ولا یجرمنکم شنآن قوم علی ألا تعدلوا اعدلوا هو أقرب للتقوی واتقوا الله إن الله خبیر بما تعملون} [المائدة ۵ :۸]

ژباړه: اې مومنانو! د الله لپاره پر حق ټینګ ولاړ او په عدل شاهدان اوسئ. داسي نه چي د کومي ډلي دښمني مو دونه را وپاروي چي له عدالت څخه واوړئ. عدالت وکړئ، همدا عدالت پرهېزګاری ته ډېر نژدې دئ او له خدایه وېرېږئ، په یقین سره خدای په هر هغه څه چي تاسي یې کوئ خبر دئ.

بله د یادوني وړ خبره دا ده، چي د قرآن مجید، دغه د لوی څښتن د سپېڅلي کلام همدا اوسني څرګند سوي اسرار زیاتو علمي

څېړنو او پاملرنو ته اړتيا لري، که څه هم ګران ډاکټر صاحب نثار احمد صمد په دې هکله ډېر او د قدر وړ زيار ګاللی دئ. خو د قرآن عجايب پای نه لري او اعجاز يې د قيامت تر ورځې باقي دي. مهال په مهال د دې سپېڅلي کتاب له اعجازونو او اسرارو څخه يو يو ځان راڅرګندوي. چې هوښيار وګړي په تحير کې اچوي او يقين يې ورزياتوي. په دې لړ کې دغه اوسنی اعجاز. لوی څښتن د همدې اوسني کمپيوټري محاسبو او علم او ټکنالوژۍ د پرمختګ په عصر کې راڅرګند کړ، څو د دې مهال انسانانو ته بيا هم دغه کتاب يو لاربښوونکی او معجز الهي کتاب جوت سي او مسلمانان د هغه احکام په کامل يقين، ډاډ او پاملرنه پر ځانونو لکه څنګه چې ښايي هغسي پلي کړي.

{ سَنُرِيهِمْ آيَاتِنَا فِي الْآفَاقِ وَفِي أَنفُسِهِمْ حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ الْحَقُّ أَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ أَنَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ } [حم السجدة ۴۱ :۵۳]

ژباړه: ډېر ژر به موږ دوی ته خپلې نښانې د عالم په ګوښه ګوښه کې هم وښيو او د دوی پخپلو نفسونو کې هم. تر څو دوی ته څرګنده سي چې دغه قرآن حق دئ. آيا دا خبره کافي نه ده، چې ستا رب پر هر څه شاهد دئ؟

کاشکې داسي وسي چې د امريکا او لوېديځ د اغېز او سياست له ولکې او حلقې څخه د باندي پاته سوي د کوم اسلامي هيواد دولت يوه ځانګه پرانيزي او د جيدو اسلامي عالمانو او د ښاغلي صمد غوندي پوهانو يوه ډله پکښې وګوماري څو په دې هکله پرله پسې جمعي او ډله ييزي څېړني وکړي او دې پوهې ته ځانګړي ميتودونه او اساسات وټاکي، څو هر چا، په تېره د کم علم خاوندانو ته په دې اورشو کې د نيلي ځغلولو موکه په لاس ورنه سي.

خبري خو ډېري دي، خو پر همدغونو به بسنه وکړو او په پای کي به خپلي خبري پر دې را لنډي کړم چي هيله ده د قرآن کريم د دې انکار نه منونکو اعجازونو او حقانيت په درک کولو سره موږ ټول د قرآن په احکامو او لاربښوونو باندي په عمل کولو او تمسک، د هغه په تلاوت، د هغه د معناوو په پوهېدو اوغور کولو، د قرآني علومو، قرآني عربي ژبي او قرآني اسلامي فنونو اوادبياتو په تعليم او تعلم، ترويج او غوړېدو بوخت سو. نه داچي د ځينو غونډو او مراسمو په پرانيستوکي د قرآن د څو آيتونو په تلاوت بسنه وکړو يا په هديرو او فاتحو کي قرآن په کوچنيو هلکانو صحت او غلط ووايو او د خلکو د حقوقو په هکله او په معاملو او کسب او کار او د ژوند په نورو فردي او اجتماعي برخو کي مو قرآن او د قرآن احکام لړ په ياد وي او يا مو هيڅ نه وي په ياد.

دغه راز لازمه ده د قرآن کريم د قرائت او تجويد د سياليو تر څنګ د هغه د تفسير او ترجمو خپرولو، د ديني کتابونو چاپولو او د اسلامي علومو درس او تدريس ته هم پام واړوو، هسي نه چي د علم او پرمختګ په دې مهال کي ان په انټرنيټ کي لا په پښتو ژبه د قرآن د تفسير او ترجمې په هکله دونه لږ مواد ولرو چي پر هيڅ حساب وي.

نو راځئ چي قرآن په بشپړه توګه پر ځان ومنو، د هغه له دښمنانو څخه خپله لار بېله کړو او کوښښ وکړو، چي د قيامت په ورځ له هغو کسانو څخه نه سو، چي رسول ﷺ شکايت ځني لري او وفرمايي:

{يَا رَبِّ إِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوا هَذَا الْقُرْآنَ مَهْجُورًا} [الفرقان ۲۵ :۳۰]

ژباړه: اې زما ربه ! زما قوم دغه قرآن پرې ايښی وو.

محمد معصوم هوتک

## د عبدالهادي ریشاء پر مړینه

د قلم څوکه مې تر زړه سم په تېرو وخته
ګورئ! نن بیا د مرګ قرعه د پښتنو وخته

د منورو پر ټولۍ د غم سرود وړغېد
د دانشورو اسوېلي دي چې تر خولو وخته

لوی و واړه خیل و پردي یې په غم وزنګېدل
پر جنازه ېاندې دا چیغه له زلمو وخته

چې ریشاء مرګ دي ضایعه ده د ادب پر مېنه
ډېر افسوس دا چې بیا په پچه د پښتو وخته
قلم یې ونه لوېد له ګوتو څه تر هغې شېبې
چې یې شَمَه له ټول وجوده په ورو ورو وخته
یو خو یې غم بل یې پر څنګ دا حقیقت، خدای مه کړه
چې یې په مرګ ګویا ریښه زموږ د اکو* وخته

پیدا په شپه و، اختر فنا په شپه د اختر
ول، رالېږئ یې! دا ناره له جنتو وخته

د مرګ و کال ته مې کچکول د هنر وګرزاوه
په صدقاتو یې پلّه درنه د ښو وخته

"قلم" خپل سر ور وباخښه "محبت" تاج کړ هدیه
د مرګ نېټه یې "غم"، "ژړا" په ابجدو وخته

اوکویل - کاناډا
۸ د اکتوبر ۲۰۰۹ع

* داروانښاد عبدالهادي ریشاء پلار حاجي عبدالغني په "حاجي اکو لالا" سره مشهور و.

حل:
غم = ۱۰۴۰ + ژړا = ۲۰۸ + ق = ۱۰۰ + م = ۴۰ = ۱۳۸۸ ش

# هنر او ادب

چلوونکی:
وحید سباوون

عبدالناصر ریشاء/لندن

مرحوم ریشاء ته

نه پوهېږم چې زه هم ستا سره مړسوم
او که ته ژوندی تر مرګه یې په ما کې
دغې پېښې تعریفونه راڅه ورک کړل
نه ژوند وینمه په ځان نه مرګ په تاکې
څه حالت دئ چې منطق یې زنداني کړل
سکون نسته په خند نه په ژړ کې
خو یوه خبره ما ته ده څرګنده
زړ بابا به پیدا نه سي په دنیا کې
ته (ریشا عبدالهادي خان صالح) وې
د (قلم زړه) ولوېدی ستا په فنا کې

د تاریخي مادې حل:
د (ریشاء عبدالهادي – خان صالح) مجموعي ابجدي ارزښت ۱۴۱۸ دئ. که د قلم زړه (ل = ۳۰) ورځني فنا سي ۱۳۸۸ پاته کېږي، چې د مرحوم ریشاء د مړیني هجري شمسي کال دئ.
۶ اکتوبر – ۲۰۰۹ع

---

عبدالحی ریشا

## د زړه غم

دا د اوښکو فوارې دي چې بهېږي نه درېږي
دا د خوږ زړګي سلګۍ دي چې پرسېږي نه درېږي

زړه خو هسې تلولی دئ نه آرام نه یې قرار سته
دا د کم غم اور بل سوی چې سوځېږي نه درېږي
بیا زړه هسې تسلی کړم چې راغلې ده دا پېښه
په غمو کې دا کم غم دئ چې ډېرېږي نه درېږي

مرګ خو حق دئ او راځي به پاته نوم دئ
دا فاني دنیا ده خلګو! چې چلېږي نه درېږي

عبدالقدیم پتیال

## غزل

**نه له درباره امان غواړو نې پروا ساتو**
**موږ هغه نه یو، چې ځانونه په بل چا ساتو**
**وجود یې خیر دئ وتلی به وي زموږ له واکه**
**خو په اوو پردو کې زړه د یار جلا ساتو**
**بېرېږو نه خو امانت دئ مجبوري یې بولم**
**کیسه د میني له هر غوږه نن په غلا ساتو**
**چې د رګو وینه مو وناځي لمبه – لمبه سي**
**په دغه نیت ځان له ساقي سره پخلا ساتو**
**تنهاکي اور سره، زخمونه هم له مالګي سره**
**سرونه کاږو سره موږ له ډېر پخوا ساتو**
**چې د دامونو له حلقې څخه ونه توربېږي**
**څکه پتیاله د یار خیال په بسم الله ساتو**

**عبدالمجید بابی**

## د میني سوال

**ستا د مخ پر سپوږمۍ سیوری د اجل سو**
**ستورو وژړل په کور کې یې اور بل سو**

**زه د زړه په پلونو درغلم ستا لور ته**
**هر قدم مي د غمو په ځنځیر شل سو**
**دواړه لاسه مي په لپو درته هسک کړه**
**راته ښکاري چې جانان د جانان مل سو**
**د سپېڅلي ساه وزر کي پیغام ګورم**
**چي دا ستا پر ځيګر سوال د میني حل سو**
**د اختر په سهار اوښکي پر ښو وړم**
**هغه ستا د در ملنګ ستا پر درشل سو**

**د بابي لمره د ژوند ستوري به درکړم**
**که نصیب مي ستا پر هسک د افق ځل سو**

احمد صمیم

## وحشي نسیم

بــازي گوشــه بــاد چلېــږي
د غـوټۍ خولــه پــه مُسـکا کـړي
درختــو یــو د بــل ســینې نــن
ســره کښېکښـلې نڅـا کـړي

د ربــا نغمــه تــوده ده
تــر پــرون نــن څــه پــه زوره
د کــاروان بــار تــړل کېــږي
د مشــرق د غــرولــه لــوره

خبــر چینــه بــاد چلېــږي
پــه گلــزار کــي نــاقراره
د ښـاخلو پــرده کــي پورتــه
دا یــو بــل رنگــه روببــاره

څــه وحشــي نسـیم راوالــوت
هــر کاکــل وحشــي کــوي
څــه مســتي پکښــي اخښــلې
چــي لمبــې تــول رقصــوي

سعید لودین

## ارواښاد ریشاء

د وطــن پــر حالــت تــل و زوړ پــدلی
پــر کونــدیانو یتیمــانو ژړ پــدلی

د سمسور هیواد ارمان یې گور ته یووړ
خدایه ته ریشاء جنت کي کړې ښاغلی

عبدالباري جهاني

## مني ته

ته د افغان ولس د هري هیلي سر ته ولاړ
ته یې په خوب او هم په ویښه یې نظر ته ولاړ
ته یې د هر قدم ملگری او د نفس یار
ته یې پنځه وخته د وراني خوني ور ته ولاړ
ته یې د تورو شپو په زړه کي خپکۍ یې د خوب
ته یې مدام لکه بلا غوندي سحر ته ولاړ
ته مي تعبیر یې د خوبونو، ترجمان یې ما ته
خزانه! دغه دي ده مېنه ته مېزبان یې ما ته
ته یې بهار کي د غوټیو خنداگانو کي پروت
ته د گلونو په عطرونو، ښکلاگانو کي پروت
ته د نودو په حرکت او خوځېدو باندي ښکېل
ته یې د پاڼو په ځلا او نواگانو کي پروت
ته د هر بوټي پر ریښه او پر تنه باندي سپور
ته یې د هري وني تن او په ساه گانو کي پروت
ته یو رښتین ژوندی تصویر د خړ افغان یې ما ته
خزانه! دغه دي ده مېنه ته مېزبان یې ما ته
د تنکۍ پېغلي پر باړخو او سترگو ته ښکارېږې
د نوي ځوان په ننگو او برېتو ته ښکارېږې
د هر افغان وجود ته ته د ځېل سینگار ورکوې
قد کي یې ته، څېره کي ته او په تلو ته ښکارېږې
ته یې خندا او په خوښۍ کي لکه لمر ځلېږې
د غم په سوز، په اوښکو ته او ساندو ته ښکارېږې
ته له وفا نه ډک ملگری د افغان یې ما ته
خزانه! دغه دي ده مېنه ته مېزبان یې ما ته
دلته لا پاڼه شین پنډک وي چي ژړېږي له تا
گل لا غوټۍ وي چي له ښېږي نه لړزېږي له تا
دلته په پرخه کي هم ستا د وجود نخښه ښکاري
شنیلی غوړېږي نه له مځکي چي ببرېږي له تا
باران، اوبه او وریځي دلته خرابي راولي
ځاځکي، ذرې، هلته ویدې او با پاڅېږي نه تا
پسرلی وي نورو ته خو ته رښتین جانان یې ما ته
خزانه! دغه دي ده مېنه ته مېزبان یې ما ته

عادل اڅکزی/چمن

## سوی فغان

**که جهاد د بې ګناه انسان وژل وي**
**که په کینه باندې مینه قتلول وي**
**چې د مور د نس ماشوم وي بې امانه**
**چې ناحقه د سرو وینو تویول وي**

**کلک منکر دي له دې کړني یو خونکاره**
**طرفدار دي د وژني یو خونکاره**
**موږ د حق په نیت قلم له تېکي کښلی**
**ستا په باب بوخت په لیکني یو خونکاره**

**خپلي خاوري ته د مور په نظر ګورو**
**یرغلګر ته د نسکور په نظر ګورو**
**چې رڼا یې په تیارو کړله بدله**
**داسې چا ته د مختور په نظر ګورو**

**موږ د ژوند په حقیقت یو پوهېدلي**
**د بشر په لوړ قیمت یو پوهېدلي**
**قدردانه یو د زړونکو د ساتونکو**
**د ښکلا په نزاکت یو پوهېدلي**

**په خوښۍ باندې پرېولو د غمو ټکي**
**و ګناه ته بږدو فقط د توبو ټکي**
**نور به نه څاڅي له زړونو توري اوښکي**
**له خپلوۍ به وباسو د پردو ټکي**

**موږ د مینې په کتاب کي سره یو یو**
**د زمان په هر یو باب کي سره یو یو**
**د توپیر کرښي تر منځ پاکول غواړي**
**په سپوږمۍ او په آفتاب کي سره یو یو**

عبدالنافع ثنا

## غزل

ترږو زخمونو ته شیبه شیبه وېښم دردونه
د ارمانونو په جامونو کي راوړم دردونه

زه یې په امن د هوس له بدو سترګو غواړم
زه دي خیالونو ته جانانه دودوم دردونه
چیري د هجر مېنه پاته بې سرېو نه سي
د زړه په وینو مي جانانه لویوم دردونه
ما د بېلتون خزان ته ډېره تابیا کړې ده
عشقه ساړه به دي ونه سي بلوم دردونه

بیا مي شپه رڼه کړه ثنا زګېروی مي اورې کنه
بیا یې خیالونه مستومه کړنګوم دردونه

---

سمیرا کوچۍ

## غزل

کعبه ساتي په زړه کي هم منات ساتي په زړه کي
دا خلک خو اوس څو رنګه حالات ساتي په زړه کي
دا سترګي مو کږې وربسي ستورو غوندي نه سي
هر څوک چي دلته لمر غوندي عادات ساتي په زړه کي
پوړني که یې نوي سي پر سر زموږ د پېغلو
غمي د رڼو اوښکو به لا مات ساتي په زړه کي
خاونده غلیم چا په دې خبر کړ چي دا خلک
نه چا پسې حساب کړي نه کسات ساتي په زړه کي
تر عمره مي تقدیر نه سي د څو شېبو تصویره
کوچۍ دي له پخوا نه دومره زیات ساتي په زړه کي

د

# شپیتو بړېڅو

## ورځ په ورځ کمې دي

لیکوال: محمد معصوم هوتک



ارواښاد عبدالهادي ریشاء د ۱۳۸۸ هـ ش کال د مېزان پر ۲۹مه ؟ د سندهـ ایالت د کراچي په ښار کې وفات او د کندهار د فرهنګوالو په غوښتنه د علامه رشاد رحمة الله علیه د مقبرې په محوطه کې په درنښت سره خاورو ته وسپارل سو.

ریشاء د ۱۳۰۵ هـ ش کال د کندهار ښار د ملا ګلداد په کوڅه کې زېږېدلی و. پلار یې حاجي عبدالغني (مشهور په اکو لالا) نومېدی، چې د دغې کوڅې د هوتکو د پراخې کورنۍ مخور سپین ږیری و*. لومړنۍ زدکړې یې پخپله کورنۍ کې بشپړې کړې وې او رسمي منظم تعلیمات یې نه درلودل. شل کلن زلمی و، چې په کابل کې یې د کندهار د وړیو د اودلو فابریکې د نماینده په توګه کار پیل کړ. د دغې فابریکې د کابل نمایندګۍ دفتر د دغه ښار د میوند واټ د لومړۍ برخې په شمالي راسته کې د "سپاهی ګمنام" چوک ته نږدې واقع و. په دغه دفتر کې د فابریکې

---

* د حاجي اکولالا په باب وګورئ: سل بګړۍ یو پوړۍ. ۱۸۱مخ





مصنوعات پلورل کېدل**. د فابریکې د دغې نمایندګۍ د سر اپارتمان هم د فابریکې ملکیت او د نماینده د استوګنې ځای و. اپارتمان دوې درې خوني او نور لوازم درلودل، چې هر وخت د کندهاریو مسافرو او سوداګرو د شپې تېر له پاره په غالیو فرش تیاري ولاړې وې. دلته به زیاتره کندهاري منورین راغونډېدل. د اروابناد ریشاء د نمایندګۍ په وخت کې به دلته کندهاري محصلین، چې په شمېر څو محدود کسان ول، هم راغونډېدل. دغه زمانه په افغانستان کې د شاه محمودخاني دیموکراسۍ د راتګ کلونه ول. په دغه وخت کې د کابل ښار تر یوې اوږدې خاموشۍ وروسته د نسبتاً آزادو سیاسي فعالیتو مرکز ګرځېدلی و. آزاد تظاهرات او غیردولتي نشرات جاري سوي ول. د دې دورې سیاسي خوځښتونو د هیواد پر ټولو ځوانانو او وطندوستانو اغېزه کړې وه او اروابناد ریشاء، که څه هم د هغه وخت له سیاسي ګروپونو سره رسمي تړاو نه درلود، خو د هغو د

** د دې نمایندګۍ متاخر مسئول شخص دانشمند مجاهد اروابناد عبداللطیف حقاني و. مرحوم حقاني د قاضي عبدالصمدخان کاکړ (۱۳۳۸ش مړ) زوی و.



ملي او وطني تبلیغاتو اغېزه یې په افکارو او اشعارو کې څرګنده وه. د دغې اغېزې ثبوت موږ په هغو مکتوبونو کې وینو، چې د ارواښاد ریشاء او د هغه د ورور ارواښاد حاجي عبدالمجید هوتک له خوا یو بل ته لېږل کېدل. په دغو مکتوبونو کې د "نماینده" په نامه یوه طنزي جریده شامله وه، چې یوه ګڼه به یې په کابل کې د ریشاء په قلم او بله به یې په کندهار کې د حاجي عبدالمجید په قلم ترتیب او خطاطي کېدله او وروسته به یو بل ته لېږل کېدله. جریده به په څلور مخه کې ترتیبېدله، چې د خبرونو، اعلانونو، ټوکوټکالو او اشعارو برخې یې درلودې. د دغې جریدې څو ګڼې زموږ په کورنۍ کې خوندي وې چې اوس له بده مرغه ورکې سوې دي. د ریشاء سیاسي افکارو په همدغه وخت نضج موندلی و او د ژوند تر پایه پورې یې کله په اعتدالي او کله په انقلابي توګه پخپلو اشعارو او لیکنو کې څرګندول. ارواښاد ریشاء څو کلونه په کابل کې پر همدې وظیفه باندې پاته سو او کله چې کندهار ته بېرته راغی نو د ځان له پاره یې د معیشت وسیله سوداګري وټاکله. په سوداګرۍ کې یې پرمختګ ونه کړ او هر وخت به یې په لږ ګټه قناعت کاوه. وروستی کاروبار یې د کندهار په سردارمددخان چوک کې د کوکاکولا نمایندګي وه. دغه کار یې د ژوند په پاچاګښتي کې له ګوتو ووت.

د ژوند په وروستیو کلونو کې کله چې ډاکټرنجیب الله د ملي روغې جوړې پروګرام اعلان کړ او په حکومت او پارلمان کې د نامه له پاره غیرګوندي کسانو ته د کار زمینه برابره سوه، ښاغلی ریشاء هم د نورو غیرګوندي اشخاصو په شان د دولتي تشکیل په وندر کې شامل کړه سو او په ولسي جرګه کې یې استازیتوب په غاړه کې ولوېد. دغه وخت زه له هیواده مهاجر سوی وم خو د هیوادوالو له خولو مې اورېدل چې ریشاء د رژیم د "بلی ګویان" په ډله کې نه راتلی او تل یې د حالاتو او حکومتي اجراآتو په برخه کې انتقادي او ملي نظر درلود.

د مجاهدینو تر واکمنۍ وروسته، چې په کابل ښار کې د اور او وینو تویولو مسابقه پیل سوه، ریشاء او کورنۍ یې کراچي ښار ته کډه سوله او ده د ژوند پور په همدغه ښار کې ادا کړ.

اروابناد ريشاء تر يوې اندازې پوري اجتماعي سړی و. په ځواني کې يې د ښکار او مېلو لويه ډله درلوده. دغې ډلې" خان اغا" باله او همدا نوم يې د نامه مل سو. خو ډېره راشه درشه يې د ښاغلي عبدالرحيم هاتف له فرهنګي ډلې سره وه. د ريشاء او هاتف صاحب پېژندګلوي به غالباً له هغه وخته پيل سوې وه، چې هاتف صاحب د ادبياتو پوهنځي محصل و. په کندهار او کابل کې د ښاغلي هاتف تجارتخانې د منورينو او تحصيل يافته وو کسانو د راغونډېدلو ځای و.

اروابناد ريشاء د اجتماعيت پر څنګ هنرمند سړی هم و. په خطاطي او رسامي کې يې متوسط مهارت درلود. زما په ياد دي چې د ښاغلي هاتف د تجارتي دفتر د کتابو سرليکونه به يې هرکال په ډېره هنرمندۍ سره کښل او هر کال به يې جلاجلا کليشې ورته جوړولې. بايد ووايم چې هاتف صاحب لومړنی سوداګر و، چې تجارتي دفتر يې په پښتو ژبه کيښ. د نورو سوداګرو دفترونه به په پارسي ژبه وه. ريشاء مرحوم يو وخت په کندهار کې د اوړو ژرنده درلوده او د دغې ژرندې له پاره يې خورا په زړه پوري لوحه رسم کړې وه. پر لوحه باندې يې د ژرندې د ماشين پر څنګ دا عبارت هم کښلی و: "په دې ژرنده کې خورا ميده اوړه کېږي. که يې نه منئ دا يې ډول او دا يې ژرنده". ده له پښتو سره يې د زړه مينه درلوده او غوښتل يې چې پښتو د ژوند په ټولو اړخونو کې ځرګنده وي. پخوا چې به د کندهار نجونې ودېدلې، نو د پلار له کوره به يې د "پوښ" په نامه سامونونه ورسره وړل. په دغو سامانو کې د نياليو او بالښتانو مخونه، چې د ستني خامک به پر سوی و، هم شامل ول. دسترخوان به يې هرومرو ورسره ورکاوه. د دې دسترخوانو پر ژيو باندي به په پارسي ژبه ځيني بيتونه ليکل سوي وه، چې يو فرد يې زما په حافظه کې داسي پاته دئ:

مرحـبا ګويم به مهــــمان خويش
روزی خود ميخورد از خوان خويش

دې ته يې چاپي دسترخوانونه ويل او غالباً به له هندوستانه واردېدل. زموږ په کورنۍ کې اروابناد ريشاء د دسترخوان دغه بيتونه په پښتو ژبه داسي واړول:

که پلو وي که ســالن وي که مــېوه وي
که شيدې که پراټې که کېک کلچه وي
خدای وهست که څه لنده وي او که وچه
نوش جان، دارو درمان دي د مېلمه وي

دا بيتونه به د دسترخوان پر څنډو باندي په ښکلي خط دوقلمه خطاطي سول او بيا به يې منځونه د ګېټۍ په تار په خامک ډک سول. دا کار پخپل وخت کې يو نوښت و، خو په عامه توګه و نه پالل سو.

اروابناد ريشاء که منظمي زدکړې نه درلودې، خو د "جمال همنشين برمن اثر کرد" په مصداق يې د بالفعل ليکوال او شاعر درجه ګټلې وه. شعر يې د وخت په طلوع افغان ورځپاڼه کې خپرېدی، چې وروسته يې ښې ډېري مجموعې هم خپرې سوې. ده هر وخت انتقادي او اصلاحي شعر وايه. شعر يې ساده او فصيح و، خو زما په نظر د ده د شعر او ليکنو ډېره مهمه ځانګړتيا د هغو لغتونو استعمالول دي، چې اوس په ورځنۍ محاوره کې لږ کارېږي. ده لغتونه له ځانه نه جوړول خو له محيط څخه يې داسي لغات اخيستل چې هم به خوندور ول او هم به يې ارکائيک ارزښت درلود. که زلمي ليکوال د ده له آثارو څخه دغه لغتونه راغونډ کړي. زما يقين دئ چې د يوه کوچنوټي قاموسګي ځای به ونيسي.

پاک خدای دې وبخښي



# هر نفس د مرګ څکه کوي

لیکواله:
**مریم صالحي**

خدای بخښلی عبدالهادي (ریشاء صاحب) چې مور خان آغا ورته وایه د هغه دوامداره ناجوړی څخه د روژې د مبارکي میاشتي د ۲۹ روځي په سهار، چې د سپتمبر د میاشتي د ۲۰ ورځي کال ۲۰۰۹ع سره برابره وه د پاکستان د کراچي په ښار کي د مهاجرت په خوږمن زړه او وجود باندي ځان حق ته وسپاره او موږ یې ټوله وژړولو.

انا لله و انا الیه راجعون

مرحوم ریشاء صاحب د ښو اوصافو څښتن و. نه پو هیږم د کمه سره یې شروع کړم؟ خدای بخښلی خان آغا مهربان، مؤدب، معلم، مدبر، منور، محقق، مدرس او د حق تعالی سره د خاصي علاقې مؤفق شخصیت و.

خان آغا پر خوارانو، مریضانو، کورنۍ، ټولني، هیوادوالو، نړیوالو او ټول بشر باندي یو خاص شفقت درلود. په کورنۍ او ماحول کي و هر دوست ته په مرسته ور ځرمه و او هر چا ږغ پر کاوه، یعني د ښې او توښۍ دوست و. په سر و مال هر چا ته حاضرېده. په ژوند کي یې هدف د بشر (د فقیره ټیولې تر آمره) آرامي او خوشحالي وه. اته ښایسته، مودبه، تعلیم یافته او په ژبه پوه اولادونه، څلور زامن او څلور لوڼي. څلور ښه زومان او څلور اهلي مېرندي سره د ګلالیو

لمسیانوځني پاته دي، چې یوې ډېرې ښې مور پخپله پاکه لمن کې روزلي او لوی کړي. خدای ﷻ دي برکتونه نور هم ورکړي.

مرحوم ریشاء خوش قواره، مهذب، ظریف د مېلو شوقي او خپل صحت ته یې هم خاصه توجه کوله. دروازه یې همیشه خلاصه وه او سترخوان یې هوار او ډېر سخي سړی و. د خپل پلرنی کور په سپینه خونه کې یې پر پاک دیوال په غټه لیکه لیکلي وه چې (خانده!) دې کلمې خاص مفهوم درلود، چې د صاحب نظرانو ډېر خوښېده.

خدای ﷻ دې وبخښي. آمین

## د مرګ څکه

تـه عبدال د پاک الله وې		تـه هادي د خلق الله وې
تـه په کور کي ګل آغا وې		زمـوږ د ټولو خان آغا وې
اولادو تـه اباجان وې		کور والا باندي ډېر ګران وې
تـه همدرد د خوار غریب وې		هر مریض ته ښه طبیب وې
کورني ته خدمتګار وې		په سر مال ورته تیار وې
د هر دوست ناره تر تا وه		ستا خبره تسلا وه
ته سخي وې نیت دي خلاص و		وهر چا ته دي در خلاص و
پر کشرانو مشفق وې		د مشرانو محقق وې
د بشر په درد دردمن وې		د ملت په غم غمجن وې
ښه مخکښ د صداقت وې		لوی باني د عدالت وې
ژوند دي ټول په رشتیا و		د انصاف حساب پر تا و
ته شاعر وې هم ادیب وې		د پوهني ښه حبیب وې
د سوچه پښتو معارف وې		د خوږې ژبې تعریف وې
د راستي سیاستمدار وې		د نړۍ لوی ابتکار وې
پر چوکۍ د شوراګانو		وملت ته د خوارانو
ستا آواز همېش بلند و		هم صادق او هم راستمند و
دا مضمون را څه اوږدېږي		روښي اوښکي مي بهېږي
خوږمن زړه مي ډېر سوځېږي		په هیڅ رنګ نه تسل کېږي
نو:

په دې وخت د لوی سهار		څه ښه وخت د استغفار
زمـوږ درغلی ته قبول کړه		په فردوس کي یې مقبول کړه
تلـو دي ډېره نخره وکړه		چه تا څکه د مرګ وکړه

د سپټمبر ۲۰ مه، ۲۰۰۹ - ورجنیا - امریکه

# دوزیر اکبر خان سیاسي - پوځي ونډه

# د کابل په پاڅون کې

(۱۸۴۲-۱۸۴۱)



لیکوال:
کاندید اکاډمیسین محمد اعظم سیستانی

ژباړن:
رحمت آریا

دریمه برخه

**د کابل د پاڅون په اړه د انګلیسي لیکوالانو ګروهني(عقاید):**

انګلیسانو په دې اړه ډېري لیکني کړي او افغانان یې غندلي او د وحشت له کلمې سره هم مانیزه هر څه چي د هغوی په نیواکګر قاموس کي پر خوله ورغلي پر هیوادپالو او خپلواکۍ مینو افغانانو یې سرېښ کړي دي، خو هیڅ چا له دغو نابللو، نامنلو او تش په نامه متمدنو میلمنو څه نه دي پوښتي چي که تاسو په کراره پخپل کور کي ناست اوسی او یو زورواکی یرغلګر ځواک ستاسو په کور درننوزي تاسو څه کوئ؟

انګلیسانو د تزاري روسیې او د فرانسې له نقشو وېره درلودله، چي د هندوستان د تودې او نرمې حلوا مړۍ به د دوی په ستونو کي بنده پاته شي او خیټو ته به یې ونه رسېږي او افغانستان یې د هندوستان د دروازې په توګه د خپلو سیاسي برلاسو لوبو او هیلو لپاره د جګړې په ډګر راواړاوه، خو دغه لوبه له سره اوره ډکي هغې ډبري ته ورته وه، چي د دوی د ستړواکۍ پر نیواکګر مخ ولګېدله او ساری یې تر دغه دمه نه و لیدلی. یو شمېر لیکوالان دغه تاریخي حقیقت مني

چي د ۱۸۳۹ – ۱۸۴۲ ز کلونو د تېرې پړه له سره تر پایه انګلیسانو ته اوړي. په دې مانا چې په دغه پېښه کې انګلیسان له سره تر پایه یرغلګر او افغانان د خپل هیواد او خپلواکۍ ساتونکي دي.

د لوشینګتن په نامه یو تن انګلیس لیکوال لیکي:

"شک نشته چې افغان د نورو ملتونو په شان که له دغسې یوه چلند سره مخامخ شوي نو د خپلې خپلواکۍ د ساتنې په لړ کې



يې يو شمېر جنايتونه هم کړي دي، خو د هغوی د خپلواکۍ په له منځه وړلوکي ټوله پړه او جرم د انګليسانو غاړو ته را لوېږي. داسې يو جرم چې يو ملت يې د بل ملت په وړاندي کوي[۷۹]".

د ديوک اف ارګايل په نامه يو انګليس سياستپوه پخپل کتاب [له ۱۸۴۱ تر ۱۸۷۸ز کلونوپورې د افغانستان سکالو] کي داسې ليکي:

"له دغې نښې ځلوېښت کاله مخکې موږ د هند د ليکي په غاړو کې يوې ناحقې جګړې ته لاس پورې کړ. پر يوه ملت مو تېری وکړ او د داسې يوه ولس وينې مو وبهولې، چې له هغوی سره د جګړې کولو لپاره مو هيڅ دليل نه درلود".

د انګليس دغه حقيقت ويونکی ليکوال زياتوي:

"له کلونو کلونو راهيسې د انګليسانو او هنديانو په دماغونو کې يوازينی درس، چې ژوره اغيزه کړې وه هغه درس و. چې د ۱۸۴۲ز کال د جنورۍ د مياشتې پر ۱۳نيټه يو تن سپاره جلال آباد ته د انګليس د لښکر د بشپړې پوپنا کېدني په اړه راووړ. نوموړی سپور د انګليس له ټول لښکر څخه د مرګ او ژوند په لپه کي کېدلی او يرغمل يوازينی ژوندی سړی و. چې ځان يې له مړيني ژغورلی و [د ليکوال موخه ډاکټربرايدن دئ]، د دغې پېښې شننه او پر هغې کره کتنه موږ دې پايلې ته را رسوي، چې دا ټول په کابل کې د بريتانوي بولندويانو له ناپوهۍ او خاموالي څخه سرچينه اخلي. موږ د داسې يوه ولس پر کوروالۍ او خپلواکۍ تيری کړی و. چې د هغوی په کورنيو چارو کي موږ د هيڅ ډول لاسوهنې حق نه درلود. د هغوی د خپلواکۍ ساتنه زموږ په ګټه وه. له دې امله دغه لاسوهنه په هماغه کچه چې له سياسي اړخه ناسمه وه له اخلاقي اړخه هم له نيا و او عدالته ليرې وه. موږ له يوه پوه زړه ور سړي سره مخامخ وو، خو موږ هڅه کوله چې يو بېوسه او بېواکه شهزاده د واک پر ګدۍ کښېنوو او له هغه مو غوښتل چې له خپل ولس او ټاټوبي سره خيانت او درغلنه وکړي. د دغې ناسمې او نالايقې موخې د تر سره کولو لپاره موږ د هند د ولس پر اوږو دروند پېټی ايښی و او دغه پېټی ورځ په ورځ درندېده. د هند له ګټو او عوايدو څخه له شل ميليونو څخه زيات لګښت راغی. چې لومړی مو په هغه وراني رامنځته کړه او بيا مو غچ اخيستني ته ملا راوتړله. ښايي په پوځي چارو کې د ډېرو لګښتونو په منلو او د هندي ځيل (لجاجت) تر سيوري مو ټول افغانستان نيولی وای، خو له نېکه مرغه چې په هندوستان او انګلستان کې د دغې سوبې درانده لګښت ته د سياستپوهانو پام شوا و هغه ستره تېروتنه موږ ته راځرګنده شوه، چې د ولس د ستاينو په ترڅ کې مو د ولس مخې ته مخامخ ومنله. موږ ته ډېر ژر څرګند ولګېد، چې تر ټولو ښه سياست او غوره لاره له داسې يوه زړه ور سړي سره د دوستۍ د لارې راخپلول دي. چې څه موده مخکې مو له خپل هيواده بې برخي کړی و او په دې توګه د راتلونکو لپاره هغه د يوه پالياله دوست په توګه را واړوو[۸۰]".

د وزير اکبرخان ضديت له پلار او انګليسانو سره:

په هغو شپو کې چې د پالک لښکر د کابل پر لور راخوځېدلی و د هندوستان واکمن خپله پرېکړه هيواد ته د امير دوست محمد

خان د ستنېدا په اړه د يوې خبرتيا په ترڅ کې څرګنده او زياته يې کړه:

وروسته له هغه چې له افغانستانه د انګليس راستنېدونکی لښکر د سندھ له سينده راواوښت له انګليسانو سره يرغمل ټولو افغانانو ته به اجازه ورکړل شي، چې له خپلو کورنيو سره بيرته خپل ټاټوبي ته ستانه شي. څرګنده ده چې د دغې خبرتيا له خپراوي سره سم امير هم چمتو و، چې بيرته خپل هيواد ته راشي. امير د ۱۸۴۳ ز کال د جنوري په مياشت کې له لودهيانې څخه لاهور ته راغی او د رنجيت سينګھ د ځای ناستي شېرسينګھ له پلوه ورته تود ښه راغلاست وويل شو. امير له څو ورځو وروسته پېښور ته راغی او د وزير اکبرخان او د هغه د پلويانو له پلوه ورته تود ښه راغلاست وويل شو. له هغه وروسته امير او هملاري ملګري يې د خيبر د غاښي له لاري جلال آباد، ګندمک، جګدلک، هفت کوتل، خورد کابل او کابل ته راغلل او د هيوادوالو له پلوه ورته تود هرکلي وويل شو او بيا د کابل د پاچهۍ پر ګدۍ کښيناست او دا ځل يې تر ۲۰ کالو پوري پاچهي وکړه.

امير دوست محمد خان له هنده د راتګ په لاره کې سردار اکبر خان د خپل وزير په توګه وټاکه او له دې چې د خپلې پاچهۍ دويمه دوره يې د خپل زوی د توري د سيوري له برکته ګڼله نو د خپلې پخوانۍ سکې پر مخ چې دا شعر پر ليکل شوی وو:

سيم وطلا به شمس و قمر ميدهد نويد
وقت رواج سکۀ پاينده خان رسيد

د وزير اکبر خان نوم داسې هم ورګډ کړ:

بزد زفضل و عنايت خالق اکبر
امير دوست محمد دوباره سکه به زر

که څه هم وزيراکبر خان د امير دوست محمد خان مشر زوی نه و خو له دې چې له انګليسانو سره په جګړو کې نوميالیتوب يې لور پر لور خپور شوی و نو د ورونو له هر ډول مخالفته پرته د هغه د وزارت دريځ ټولو ته د منلو وړ و او امير له دغه اړخه هوسا ډډه ووهله، خو دغه نوميالیتوب امير ته له بل اړخه ستره ستونزه وزېږوله، چې د امير د پاچهۍ لومړي کلونه د دغې ستونزې په هوارولو کې تېر شول. د لومړي امارت د کلونو په پيل کې د امير نقشه دا وه، چې د سدوزيو ورونو په منځ کې وېشل شوی افغانستان په يوې را لنډې سيمې کې د خپلې واکمنۍ تر سيوري لاندې را ټول او مشري يې پخپله وکړي.

د لومړي امارت په پړاو کې يې غوښتل د سندھ تر سينده پوري پېښور او ورڅېرمه سيمې چې د سيکهانو په ولکه کې وې بيا راخپلې کړي او تر هغه وروسته مخه کندهار او هرات ته را واړوي. له همدې امله و، چې په پېښور کې يې له انګليسانو سره پر خبرو اترو ټينګار کاوه او همدغه سکالو له انګليسانو سره د افغان - انګليس د لومړۍ جګړې لامل وګرځېده. خو له هنده تر راتګ وروسته هغه خپل ګامونه په سرنسکوري ډول را پورته کړل په دې مانا چې د پېښور له سوبې او نېبلولو څخه لاس پر سر شو او د نورو ولايتونو لکه کندهار او هرات په اړه يې ځنډ وکړ او ستر ګو يې يوه وړنده (مناسبه) شېبه څارله. هغه غوره ګڼله، چې خپله موخه د وسلې د کارولو پر ځای د لږ ګواښ په منلو د سياست او پوهې له لاري تر لاسه کړي، او اوس يې همداغه تګلاره غوره کړه.

د هغه برعکس وزير اکبرخان چې انګليسان يې په زمولتيا (ضعف) او ماتي کې ليدل، نه شوای کولای د پېښور د نيولو خوب له سره ليرې کړي. دا هغه شېبې ورځې دي. چې

د رنجیت سینګهه له مړیني وروسته د سیکهانو د دولت کورنۍ اکر وکر د افغانستان د دولت له اکر وکر څخه په بدترینه سیاسي چاپېریال کې خپلې نیمګړې ساوي کښته پورته کولې او دې ته په لیدلو وزیر اکبر خان هڅه کوله، چې د سندهه تر سینده پورې د افغانستان له لاسه تللې خاوره بیرته تر لاسه کړي. همدارنګه سردار غوښتل چې کندهار د خپلو اکاګانو له منګولو را خلاص او له کابل سره یې ونښلوي. یارمحمد خان وزیر چې د هرات خپلواک واکمن ګرځېدلی و او لوریې د وزیر اکبر خان په نکاح کې وه وزیراکبرخان د دغه کار کولو ته هڅاوه[81].

په ۱۸۴۳ ز کال کې انګلیسانو سندهه چې تر ۱۸۴۲ ز کال، د شاه شجاع تر مرګه پورې، د افغانستان د خاورې یوه برخه ګڼل کېدله له هندوستان سره ونښلاوه او دغې پېښې په افغانستان کې د انګلیسانو پر ضد کلک انګلیسي ضد احساسات راوپارول او په دې توګه د انګلیسي ضد تولنې لمنه، چې مشري یې وزیراکبرخان کوله لا پیاوړې کړه. له دې چې امیر له هر هغه ګام څخه ځان لیرې ساته چې د انګلیس د ګټو پر ضد وي نو ډېر ژر د زوی او پلار تر منځ شخړه رامنځته شوه. په همدې ترڅ کې په ۱۸۴۵ ز کال کې انګلیسانو پر پنجاب برید وکړ او د رنجیت سینګهه ځای ناستي چې نوی د کره او اصلي ګواښ په تومنه پوه شوی و د انګلیس په وړاندې یې له امیر څخه د مرستې غوښتنه وکړه. خو دا هغه کار و، چې امیر ورڅخه ډډه کوله او سره له دې چې وزیر اکبر خان ډېر ټینګار وکړ او په هغه کې د پېښور د بیرته تر لاسه کولو شونې والی په ځرګنده ښکارېده خو بیا هم امیر ډډه وکړه. سره له دې هم وزیراکبر خان د پلار د غوښتنې برخلاف د سپرو یوه ډله پنجاب ته ولېږله او نوموړې ډلې د سوبرانو په جګړه کې ګډون وکړ خو رغنده کار یې تر سره نه شوای کړای او انګلیسانو هم دغه خوځښت هومره جدي ونه نیو.

له دغې پېښې وروسته وزیر اکبر خان ته چې د کابل د واکمنۍ اډانه کوچنۍ ښکارېدله هڅه وکړه. چې کندهار راخپل کړي او د دغه کار د ترسره کولو لپاره یې د هرات له واکمن یارمحمد خان سره اړیکې ونیول او د هغه له لارې یې له ایران سره د دوستۍ لاره پرانیستله. دغه کار د دې لامل شو، چې وزیر یارمحمد خان خپله لور (بوبوجان) وزیر اکبرخان ته ورکړي او د وزیر اکبر خان د تره لور (ګوهر) خپل زوی سعیدمحمد خان ته وغواړي.

د فراه د ولایت د ستونزې پر سر د وزیر یارمحمد خان اړیکې د کندهار له سردارانو سره ترینګلې وې. د فرهنګ په وینا "له ډېرو مودو راپدېخوا د فراه ښار او ولایت د هرات او کندهار ولایت د واکمنو تر منځ د ستونزې سرچینه وه او د ځواکونو د انډول په پرتله د دوارو خواوو په منځ کې لاس په لاس کېدل. فراه د پرله پسې جګړو د اور په لوخړو کې د ډېرو تاوانونو په لیدلو خپل پخوانی اهیمت له لاسه وکړی و. خو له دې سره سره د دواړو ګاونډیو ولایتونو د واکمنو لپاره د پت، نوم او ډاډینې یوه لاره ګڼل کېدله. له دې چې کهندل خان د هرات د والي د بوختوالي له امله، د فراه ولایت پخپله ولکه کې را نیولی و، نو په دې اړه وزیر یارمحمد خان په کابل کې له وزیر اکبر خان سره خبرې وکړې او دواړو پرېکړه وکړه. چې کندهار د کهندل خان او د هغه د ورونو له لاسه را خلاص کړي. امیر دوست محمد خان ټینګار وکړ. چې دغسې

یوه شیبه ورنډه نه ده، خو هڅو یې ګټه ونه کړه، او په هیواد کې د انګلیس ضد مورچل چې مشري یې دواړو وزیرانو (اکبرخان او یارمحمد خان) په یو موټي والي کوله لا پیاوړی کړ(۸۲)".

ارواښاد غبار ګروهن دئ، چې:

"په ۱۸۴۶ ز کال کې د معاذالله خان، صاحبزاده جانان او صاحبزاده فتح خان تر مشرۍ لاندې د تګاب وګړو د امیر دوست محمد خان په وړاندې پاڅون وکړ او د امیر لېږل شوی لښکر یې د هغه له ورور جبارخان سره یو ځای د یوه ناڅاپه چپاو په ترڅ کې دړې وړې کړ. وزیر محمد اکبر خان پخپله تګاب ته ولاړ او صاحبزاده ګان یې په یوه مخامخ جګړه کې ووژل، مالیه یې وټاکله او بیرته کابل ته راستون شو. په همدغه کال کې و، چې په ننګرهار کې د اشپان او ماماخېلو وګړو د امیر په وړاندې پاڅون وکړ. امیر دوست محمد خان اړ و، چې د پاڅون د ماتولو لپاره وزیر محمد اکبر خان ولېږي. د وزیر اکبر خان سترګو چې د دغسې یوې شیبې لپاره لارې څارلې نو ژر تر ژره یې مخه د جلال آباد پر لور راتاو کړه او پاڅونوال یې د پوهې او سولې له لارې بیرته پر خپل ځای کښېنول او بیا یې د ځواک را ټولولو ته ملا وتړله، چې د سند په پر لور ولاړ شي او د افغانستان له لاسه تللې ځمکې بیرته تر لاسه کړي، ځکه انګلیسي سرتېرو د سیکهانو حکومت ټکولی و او پنجاب له څېڅپانده اکر وکر سره مخامخ و.

څرګنده ده، چې امیر دوست محمد خان دغسې یو خوځښت نه غوښت او هڅه یې وکړه، چې د وزیر مخه ونیسي. په همدغسې یوه وخت کې وزیر اکبر خان ته د ملاریا ناروغي ورپېښه شوه او د یوه هندي طبیب له پلوه ورته په ګولۍ کې زهر ورکړل شول او د څو ساعتو په ترڅ کې یې سترګې له نړۍ پټې او د مړینې ګټه یې د انګلیس دولت ته ورسیدله (۱۸۴۶ ز کال، د ۱۲۶۳ ق کال ژمی).

د وزیر اکبر خان مړی یې د کابل له لارې بلخ ته یووړ او د مزار شریف په روضه کې خاورو ته وسپارل شو(۸۳)".

په دې ډول د یوه پیاوړي اتل جنګیالي د ښادنامو داستان پای ته ورسېد. د وزیر اکبرخان له مړینې سره سم، کابل د ملي مشرانو له شتون څخه تش شو، ځکه وزیر اکبرخان او میر مسجدي خان ته زهر ورکړل شول، عبدالله خان ووژل شو، نائب امین الله خان بندي شو، سردار سلطان احمد خان، محمدشاه خان بابکرخېل له یو شمېر نورو ولسي اتلانو سره یو ځای له درباره وشړل شول.

**د وزیر اکبرخان اخلاق او شخصیت:**

په نولسمه پېړۍ کې زموږ د ولس د خپلواکۍ په جګړو کې وزیر اکبرخان یو ځلانده څېره ده. تنکی ځوان و، چې پښه یې د هیواد په سیاسي پېښو کې رابښکېل شوه او په خپلو ټولو پوځي ننګونو کې په سرلوړۍ بریالی راووت.

په لومړي سر کې مو وویل چې وزیر اکبر خان ۱۶- ۱۷ کلن و، چې په کندهار کې یې د شاه شجاع لښکر دړې وړې کړ او دغه بریا ده ته له هغه مهاله وروسته ور په برخه کېدله، چې په جلال اباد کې یې د دغه ولایت سرغړاوی والي نواب محمد زمانخان ټکولی و، نوموړي په کلابندۍ کې له امیر دوست محمد خان سره د بالاحصار د دېوالونو د

مورچلونو له شا جګړه کوله. شل کلن و، چې د خیبر د درې په بله غاړه کې د یوې مخامخ جګړې په لړ کې د سیکهانو سرلښکر، جنرال هري سینګه مات او بیا یې وواژه. ۲۲ کلن و چې زموږ پر هیواد د سیکهانو او د انګلیس د ځواکونو له خوا له دوو لوریو تېری وشو، اکبرخان د سیکهانو د لښکر د مخنیوي لپاره د خیبر تر درې پورې وړاندې ولاړ خو د هیواد د خپلواکۍ او ولسواکۍ دښمنانو هغه ته د جګړې له پیلیدا مخکې زهر ورکړل او د مرګ تر پولې یې ورساوه خو له نیکه مرغه مړ نه شو او یو ځل بیا د تاریخ د ننګونو له آزمویښې څخه سرلوړی راووت.

وروسته په هماغه کال کې د بخارا د پاچا په زندان کې ولوید او له ۲ کالو بند وروسته هیواد ته راستون او په ۱۸۴۱ ز کال کې په کابل کې د مشرانو او سپین ږیرو په ټینګار او غوښتنې یې د انګلیسي ضد پاڅون مشري پر غاړه واخیستله او درغلن مکناټن یې د افغاني سیاست په لومو کې راښکېل کړ او مخکې له دې چې د دښمن غشی دی له پښو وغورځوي د هیواد تګمار دښمن یې وواژه او له هغه وروسته د افغانستان د حقپال ولس د سترګو تور وګرځېد.

د انګلیس د یرغملو په وړاندې د وزیر اکبرخان له مهربنتوب او له ښېګڼو ډک چال چلند د دې لامل شو، چې ان د انګلیس د شپاړلس نیم زریز لښکر له پوپنا کېدنې سره سره چې له هغو څخه یوازې یو تن ژوندی پاته و، بیا هم هغه په درانده نوم یاد کړي. وزیر اکبرخان د جلال آباد په لاره کې د ۴۴ تنو انګلیسانو ژوند چې له هغه څخه یې د مرستې غوښتنه کړې وه وژغوره او چا ته یې اجازه ورنه کړه، چې هغوی ته څوک تاوان ورسوي. څرګنده ده چې یرغمل کسان د وزیر اکبرخان لپاره له ارزښته ډک کسان ول، خو له دې سره سره که د میلمه پالنې خبره رامنځته شي، نو د هغوی میلمه پالنه یې د کوربه په توګه کوله. ان کله چې په جلال آباد کې یې د جنرال سیل له لاسه ماته وخوړله او ټپي شو د جلال آباد د مجاهدینو له ټینګار سره سره دې ته حاضر نه شو، چې یا یرغمل کسان وځوروي او یا د مېرمن سیل په ګډون هغوی ووژني. مېرمن سیل چې د خپلو یادونو کتاب یې لیکلی د سردار اکبرخان نوم په درنښت یادوي او وایي چې:

"نوموړي سردار هڅه کوله چې یرغمل نیول شوي کسانو ته ځانګړې پاملرنه وکړي او پام به یې ساته، چې څوک یې په بې لامله توګه ونه ځوروي او د ښځمنو پت یې خوندي وساته[۸۴]".

لوشینګټن د [لوی جګړې او کوچنې هیواد د جګړې] د کتاب لیکوال د وزیر اکبرخان د ښېګڼو، کړو وړو او چال چلند په اړه داسې لیکي:

"هغه بولندوی چې د یوه لښکر د پوپنا کېدنې ښستې یې ایښودلې و که د یوې دروهې (توطیې) په ترخ کې دروهه جوړونکي ګوتو ته ورتلل نو له هغه سره سره به یې د ښېګڼې په کولو د میلمنه پالنې په دود د هغوی پالنه کوله. یوه ورځ یې د هغه مخې ته "لیوتننت لویل" راووست، محمد اکبرخان د هغه ټپونه په خپل لاس ور وتړل او د ټپ پر سر یې ورته لته دود کنښېښود او هغه ته یې خپله ډېره زړه سواندي ورڅرګنده کړه. له استثنایي شېبو پرته د هغه چال چلند په ټولیز ډول له ټولو سره یو شان و. سردار اکبر خان له انګلیسي یرغملو سره داسې چال چلند وکړ، چې پرمختللې مدني هیوادونه

يې له جنګي يرغملو سره کوي او که د هغه دغه چال چلند د لوېديځ له نورو واکمنو د ښېلګې په توګه د حيدر يا ټيپو سلطان له ميړانو سره پرتله کړئ نو د افغاني مشر د لوړو اخلاقو او ښېګڼو ښېلګې به په ځانګړتيا در څرګندې شي[٨٥]".

هغه څه چې دغه ليکوال هک پک کوي دا دي، چې ولې سردار اکبرخان له يوې خوا د دومره لوی لښکر پوپنا کېدنې ته غاړه ږدي او له بلې خوا د همدغه لښکر پر کوچنۍ پاته شوې ډلې زړه سواندی دئ؟

ځواب څرګند دئ. سردار اکبرخان د افغاني ځانګړتياوو او چال چلند په لرلو له چا غچ نه اخيست (دا د ټولو افغانانو د ژوند يوه دوديزه ښېلګه ده، چې که څوک ځان د افغاني سيوري پناه ته وسپاري، نو هغه سړی له غچ اخيستنې څخه بچ دئ) او که سردار د يوه لښکر پوپنا کېدنې ته غاړه ږدي هغه يې ولسي او ملي دنده وه، ځکه دا پخپله انګليسان ول، چې په څو څو ځله يې خپلې کړې ژمنې تر پښو لاندې کړې وې.

سردار محمد اکبرخان د لغمان په بديع آباد کې له انګليسي يرغمل کسانو سره هغسې له ښېګڼو ډک چلند کاوه، چې له يوه افغاني سردار سره ښايي. هغه د ټپيانو خبر اخيست، ښځمنو ته به يې د زړه ډاډينه ورکوله د هغوی له ماشومانو سره د ځمکې پر مخ کښېناست او له هغوی سره به يې لوبې کولې او په افغانستان کې د دوديزه ژوند د يوې برخې پر بنسټ يې د انګليسي ښځو او ماشومانو په ساتنه او هغوی ته په درنده سترګه کتلو کې اړينه پاملرنه کوله.

اندرسن يو تن انګليسي افسر د يرغمل نيول شويو کسانو په ډله کې و او د هغه څلور کلنه لور هم د خورد کابل د درې په غاښې کې د ١٨٤٢ ز کال د جنوري پر اتمه نېټه د غازيانو لاس ته لوېدلې وه او د سردار اکبرخان د لارښوونې پر بنسټ نوموړې نجلۍ کابل ته لېږل شوې وه، چې د نواب محمدزمانخان په کور کې يې ژوند کاوه او د نواب د کورنۍ له بامني او ميني ډک چاپېريال څخه برخمنه وه. د نجلۍ مور او پلار له دې امله سخت په اندېښنه کې ول. سردار اکبرخان د نائب امين الله خان په نامه له جلال آباده يو ليک ولېږه او نجلۍ يې د ډاډ ور کسانو له لارې بيرته راوغوښتله. په دې اړه يو ليک شته چې د سردار اکبرخان په خپل قلم ليکل شوی دئ. دا دئ اوس د همدغه ليک متن ولولئ:

ګران اکا او نائب صاحب دې د پاچيانو د ستر او څښتن پاچا د لوري ځلاندي ماڼۍ د رڼا په روښنايي کې رانغاړلی وي او د ستاينو وړيا دې پرې وي او لوی څښتن دې له هر ډول کړاوونو څخه په ساتنه کې د خپل سيوري تر پناه لاندې ولري او د خوښۍ هيله يې کوم. له هغه وروسته غواړم د اندرسن د يوه تن پيرنګي د لور په تړاو څرګنده کړم، چې د هغه لور د خورد کابل په دره کې مخورو او څښتن دوست محمد عمرخان ته ورکړل شوې وه او د نوموړې نجلۍ پلار د څښتن دوست ميراحمد خان لاس ته ورغلی و او له هماغه نېټې وروسته د نوموړې نجلۍ د کورنۍ اړوند کسان چې زما په ولکه کې دي خورا زيات کړېږي چې په دې تړاو مخکې هم ليکنه شوې وه. اوس يو ځل بيا ليکم چې په هر ډول چې اړينه بولئ او کېږي هماغه نجلۍ د ډاډمنو کسانو په ساتنه کې راوليږئ ځکه دا ښه کار دئ او که را ونه رسېږي نو ډېره ناوړنده او نامناسبه کړنه به وي. هيله مند يم چې په دې

تړاو تر خپلي شوني وسې هڅه وکړئ، زموږ له اړخه مو زړه ډاډه اوسه، د خپلې روغتيا او د روانو پيښو د لړۍ خبر په ليکلي توګه موږ ته راولېږئ بشپړ ډاډ لرم، چې د اندرسن د لور په رالېږنه کي به هېڅ ډول نيمګړتيا او بې پروايي ونه شي او دا يو له اړينو چارو څخه ده چي ودې شي. نور مو د لوی څښتن په پنځوني او د بامني تر سيوري لاندې غواړم. د سردار محمد اکبرخان مهر (۸۶)".

د دغه ځانګړي ليک د ليکښې له مخي د دښمن د ناموس او د هغوی د ځان د روغ رمټ والي په اړه د غازي سردار محمد اکبر خان هغه انساني احساسات راڅرګندوي چي د يرغمل نيول شويو کسانو په تړاو يې درلودل، د دغه ليک څوکرښي هغه له وياړه ډک لاسوند دئ، چي د دغه سردار مجاهد دريځ يې د دښمن په سترګو کي لا دروند او لوړ کړئ و. د ۱۸۴۲ ز کال د مې د مياشتي په لسمي نېټې نوموړي نجلۍ د هغې مور او پلار ته وسپارل شوه، چي مور او پلار د خوښۍ په جامو کي نه ځايېدل. د نواب محمدزمان خان کورنۍ نجلۍ ته ورښودلي ول چي که څوک ورڅخه پوښتنه وکړي نو و دې وايي چې:

"مور او پلار مي کافر دي، خو زه مسلمانه يم (۸۷)".

له جنګي يرغملو او د هيواد له دښمنانو سره د سردار اکبر خان د اخلاقو او له ښېګڼو برخمن چال چلند او د هغه د مېلمه پالني په اړه له انګليسي ليکوالانو څخه ډېر څه پاته دي چي هر يو يې پخپل وار هغه څه چي نن موږ وايو د وزير اکبرخان د دغې ځانګړتيا. رښتوني منښته کوي.

بريدمن اير (يو تن يرغمل) وايي، چي: د انساني اخلاقو او ښېګڼو بله لوړه کچه بل ځای نه شو موندلای، چي اکبرخان يې له خپل لوري د يرغملو په حق کي څرګندوي، په هغه شپه کي چي يرغمل او د دوی ساتونکي د کابل د بهانده سيند د څپاندو څپو له سره تېرېدل هغه ډېره انديښنه درلوده، چي له يرغمل نيول شويو کسانو څخه څوک ډوب نه شي او په پای کي ټول روغ رمټ له سينده تېر شول. اير د مکنزي د وينا له مخي چي د دسامبر د مياشتي د ۲۳ په غونډه کي يو يرغمل و، وايي:

"زه بايد د محمداکبرخان په اړه د نياو او انصاف له مخي ووايم چي کله زما د غاړي د پړېکولو لپاره د غازيانو کړۍ راتاو شوه نو ما د هغه رکاب ته لاس واچاوه او ځان مي ټينګ کړ، هغه په زړه ورتيا خپله توره له تيکي را وايستله، توره يې تر سر تاو کړه او ويې ويل "هيڅوک نه شي کولای هغه ته تاوان ورسوي، مګر دا چي لومړی زما چاره راوکړئ". د وزيراکبرخان پر اخلاقو، غرور هغه وخت غلبه وکړه کله چي پوه شو چي نور زه له ګواښ سره مخامخ نه يم، او په ملنډو يې راته وويل چي "ته راغلې يې چي زموږ هيواد ونيسې (۸۸)".

لوشينګټن ليکي:

"سره له دې چي د يرغمل نيول شويو او د وژل شويو خپلوان په وېري او ترهوري پر اکبرخان بد وايي او د خپلو خبرو لپاره دلايل هم لري خو يرغمل د مېلمنو په توګه په برابر دريځ د کوربه مخي ته کېښني او له هغه سره خوراک او څښاک کوي. د انګليس د لښکر پوپنا کوونکي او د انګليس د سياسي استازي مکناټن وژونکي. د خاورېني ځمکي پر مخ د هغو کسانو د ماشومانو په منځ کي چي ژوند او مرګ يې د ده په لاس دئ ناست او

له هغو سره لوبي کوي او پر هغوی ګران دئ...[۸۹]".

ان پر افغانستان د انګلیسانو له یرغل مخکې د بهرنیو په وړاندي د سردار اکبرخان چلند له درناوي ډک و. لرغون پېژندونکی او په ۱۸۳۸ز کال کي د امیردوست محمد خان دربار ته د برنس د پلاوي پېښلیک لیکونکی (واقعه نګار) چارلزمیسن تر یوې مودې پوري په کابل کي پاته شو او د بالاحصار ګرد چاپېره یې د لرغون پېژندني څېړني پیل کړې، چي په پای کې د څو ښځمنو مجسمو کوپړی، یو شمېر لوښي او نور اوزار وموندل. کله چي سردار اکبرخان د دغو موندنو په اړه خبر شو هغه یې ځانته را و باله، کله چي د سرو زرو په پاڼو پسولل شوې د کنډو (مجسمو) سرونه یې ولیدل، ویې ویل:

کاشکي په ریښتونې نړۍ کي هم دومره ښکلا وای. میسن وایي، چي سردار اکبرخان او د هغه اکا نواب جبارخان د بهرنیانو ساتني، پالني او د هغوی د اړتیا و برابرولو ته ډېره پاملرنه کوله او له هره اړخه یې پوهانو او لرغون پېژندونکو ته اسانتیاوي چمتو کولي. میسن نوموړي ارزښتناکه شیان لومړی کلکتې او بیا یې لندن ته یووړل[۹۰].

د افغانستان د وروستنیو پاچهانو (پادشاهان متأخرافغانستان) د کتاب لیکوال د سردار اکبرخان په اړه لیکي:

"وزیر اکبرخان یو پوه، لایق او هوښیار سړی و او ته به وایې چي په دنیوي چارو کي یې له ټولو ډکر ګټلی وي او په عقل او ځیرکۍ کي او د نړۍ لید په تدبیر کي تر ده لوړ نور څوک موندنه شي[۹۱]".

سردار اکبرخان زړه ور او پخپله ژبه او ژمنه ټینګ ولاړ سړی و. کله چي د مرنجان په غونډۍ کي یې د فتح جنګ او نائب امین الله جنګیالیو ته ماته ورکړه او د محمد شاه خان بابکرخېل په منځګړیتوب سولي او د فتح جنګ د وزارت د څوکۍ منلو ته یې غاړه کښېښودله، نواب محمدزمانخان سردار د وزارت د څوکۍ له منلو او له نائب امین الله خان سره د خپلوۍ له کولو څخه منع کړ، خو هغه ځواب ورکړ اوس مي د سولي ټول آړونه منلي او نه شم کولای له خپلي ژمني بیرته راوګرځم.

حمید کشمیري د سردار اکبرخان له ژبې نواب زمانخان ته وایي:

جـــوابش بگفت اکبـر نامجـــوی
که اکـنون چه خیـزد ازین گفـتگوی

چوشب بسته پیمان ســحر بشـکنم
چه گـــویـد بـر دوستان دشـمنم؟

درستی گراز عـــهدخـود گم کـنم
ازین پس چــه پیمان بـه مـردم کنم[۹۲]

ژباړه: نومیالي اکبر ورځواب کړه چي له دغو خبرو څخه څه لاس ته نه راځي ځکه چي په شپه کي کړې ژمنه نه شم کولای بل سهار راماته کړم، زما دښمن به زما دوستانو ته څه ووایي؟ که زه له خپلي ژمني سپیڅلتیا لیري کړم نو له ولس سره به څه ژمنه وکړای شم.

د همدغه ځواب په ورکړي د نواب محمدزمانخان او د وزیر اکبر خان اړیکي ترینګلي شوې او خبره دې کچي ته راورسیدله چي دواړو د اکا زامنو د یو بل پر مخ توري راوایستلې او سردار اکبرخان

لاسبري شو او نواب محمدزمانخان يې وبخښه او بيا يې له هغه د امير دوست محمد خان تر راښتنيدلو پورې هغه يې د کابل د پاچهۍ د مرستيال (نائب) په توګه وساته.

سردار اکبرخان مېړه مخی، پتمن او بخښونکی و. کله چې د هغه چوپړمار او ساتونکی پيرمحمد کاکړي د شا له لوري پر هغه ډز وکړ، سردار ټپي او له مرګه بچ شو. پيرمحمد ومنله چې انګليسانو دی تېر ايستلی او هغه ته يې روپۍ ورکړي وې، چې سردار ووژني نو اکبرخان نوموړی وبخښه او له مرګه يې ورتېر شو

سردار مېړنتوب او افغانيت له يو بل سره برابر ګڼل، هيڅکله يې نه غوښتل چې دښمن ته شا واړوي. ان کله چې د بخارا له زندانه ورته د تېښتې لارې چارې برابرې شوې او پلار يې ورڅخه وغوښتل، چې له هغه سره يو ځای د بخارا له زندانه وتښتي نو سردار دغه کار بې پتي او له هرانده (بزدلي) ډک کار وباله او پلار ته يې په ځواب کې وويل چې مرګ په مېړنتوب کې مني خو نه غواړي په پتۍ کې ژوند وکړي.

لنډه دا چې سردار اکبر خان د خپل لنډ دېرش کلن ژوند نيمايي برخه په وياړ سرلوړی تېره کړه او د سرښندويه ژوندانه دغه کلونه يې د هيواد د ملي واکمنۍ او د ځمکنۍ بشپړتيا په ساتنه کې له برياوو ډک ول، له انګليسانو او له پرديپالو هيواد پلورو سره يې نه پخلا کېدونکې دښمني درلودله او دغه موده يې له خپلي ځلانديې او تورکښي (آخته) توري سره يو ځای د هيواد او د ملي يووالي د دښمنانو پر وړاندې په جګړه کې تېره کړه. د هيوادوالو په زړونو او سترګو کې د يوه مېړني غازي مجاهد او د انګليسانو د يوه سرسخته دښمن په توګه د هغه د زړه ورتيا او مېړانې يادونو دومره ستر او له درنښته ډک کړ، چې د ۱۸۴۱ - ۱۸۴۲ ز کلونو د پاڅون له بريا سره سم د هغه د بيادنامو او له برياوو ډکو جګړو په وياړ د اکبرنامې په نامه شعري بوللي (حماسه) او رزم و بزم د (حميد کشميري له پلوه [په ۱۸۴۳ ز چې له ۱۲۶۰ هجري سره سمون خوري] جوړه شوه ) او ظفرنامه اکبري [اکبري بريليک] [د ډيلي د اګرې د اوسيدونکي قاسم علي له پلوه په ۱۸۴۶ ز کال چې له ۱۲۶۳ هجري سره سمون خوري] وويل شوه. چې دغو دواړو د هغه نوميالتيوب ته د يوه تلپاتنه اتل نوم ورکړ.

وزير اکبرخان د هيواد له ودانيو او د هيواد د چاپيريال له ښېرازۍ سره ډېره مينه درلودله. د سراج التواريخ د ليکوال د وينا پر بنسټ په جلال آباد کې د باغ سراج ودانۍ د وزير اکبرخان له نه هېرېدونکو ځليو څخه يو کار دئ. وزير اکبرخان د خپلې ځوانۍ په ډېرو تودو شپو ورځو کې په ۱۸۴۶ ز کال کې په دېرش کلنۍ کې په لغمان کې سترګې له نړۍ وتړلې او د هغه جنازه يې د فيل پر اوږو مزارشريف ته يووړه او د هغه د وصيت پر بنسټ يې د حضرت علي کرم الله وجهه په روضه کې خاورو ته وسپاره[۹۳].

له هغه وروسته ګنګوسې خپرې شوې چې انګليسانو د خپل ۱۶۵۰۰ کسيز لښکر د پوپنا کېدنې په غچ کې د خپل يوه جاسوس له لارې هغه ته زهر ورکړل.

اروا يې ښاده او ياد دې تل ژوندی وي!

(نوربيا)



# (۱۰۰)

# نړیوال شخصیتونه


لیکوال:
مایکل هارټ

اردو ژباړن:
محمدعاصم بټ

پښتو ژباړن:
عبدالناقع ثنا


### ۶- سېنټ پال (۶۴-۴ ز):

د عیسي علیه السلام ځوان همعصر او ملګري سېنټ پال دې نوي مذهب ته د خلکو پراخه پاملرنه راواړوله. پر مسیحي الهیاتو (خدای پالنه او پېژندنه) باندې دده اغېز تر نورو ټولو مسیحي لیکوالو ډېر پاينښت لرونکي و او هم یې اثراتو په خلکو کې ژر ځان ښکاره کاوه.

پال د (ساول) په نوم هم پېژندل کېږي. نوموړی د سیلیسیا په ښار کې (چې په نننۍ ترکیه کې راځي) د ټارسس په سیمه کې وزېږېد. دی د روم تبعه او یهودی و. په زلمیتوب کې یې عبراني ژبه زده کړه او صیهونیت زده کړه ئې وکړه. نوموړي د خېمه جوړولو په کسب کې روزنه تر لاسه کړه. د ځوانۍ پر مهال د ربي ګمالیل په نامه له یوه تکړه پوه څخه د زده کړې تر لاسه کولو په موخه یروشلم ته ولاړ. عیسي علیه السلام او پال دواړه پر یوه مهال په یروشلم کې وو خو داسې ګمان کېږي، چې دوی دوو تر آخره له یو بل سره ونه لیدل.

د عیسي علیه السلام تر مړینې وروسته لومړنیو عیسویانو ته د بدعتیانو (مذهبي

یاغیانو) په سترګه وکتل سوه او د ربړونو او کړاونو سره مخ کړل سول. خپله پال هم د کړوني په چاره کي برخه واخیسته. خو د دمشق پر لوري د سفر پر مهال يې حال بدل سو او عیسی (علیه السلام) ورسره خبري وکړې. له دې سره نوموړی د دې نوي مذهب پیرو سو، چي دا يې د ژوند يو د پام وړ پړاو و. هغه سړی چي يو وخت د عیسائیت سخت دښمن و، اوس د دې نوي مذهب ډېر اغېزناک او له جذبې ډک پیرو سو.

پال خپل پاته عمر د عیسائیت په برخه کي د څېړني او لیکني په برخه کي تېر کړ. د ده په وسیله باندي په ډلو ډلو خلکو عیسائیت ومانه. نوموړي د خپلو تبلیغي هڅو په لړ کي کوچنۍ آسیا، یونان، شام او فلسطین ته سفرونه وکړل. د پال تبلیغات د یهودیانو په پرتله په لومړنیو عیسائیانو کي ډېر بریالي وو. په دې کي شک نسته چي د نوموړي دریځ د ده په وړاندي کلک غبرګون راوپاراوه، چي څو ځله د مرګ له ګواښ سره هم مخ سو. پر غیر صهیونیانو باندي د پال نظریو ژور اغېز وشیندی. نوموړی دوئه په پراخه کچه وپېژندل سو، چي ورته (د غیرصیهونیانو حواري [ملګری]) ویل کېږي. بل چا د عیسائیت په دودولو کي دوئه د پام وړ رول نه دئ لوبولی. پال د روم د امپراطورۍ په ختیځو سیمو کي تر درو اوږدو سفرونو وروسته بیرته یروشلم ته راوګرځېد، چي هلته ونیول سو. په روم کي پر نوموړي دعوا اقامه کړل سوه. دا څرګنده نه ده چي دا محاکمه څنګه پای ته ورسېده، یا ایا نوموړی یو وخت له روم څخه بهر ووتی که نه؟ په غالب ګومان نوموړی د ۶۴ ز په شاوخوا کي همدې روم ته نژدې ووژل سو.

د عیسائیت په تبلیغ کي د پال اغېزناکي هڅي پر درو بنسټونو ولاړ وې:

۱. د تبلیغ کوونکي په توګه د نوموړي ستر بریالیتوب.

۲. د ده لیکني چي د نوي لوزنامې (انجیل) یوه د پام وړ برخه جوړوي.

۳. د مسیحي الهیاتو (خدای پالني او پېژندني) د تکامل په برخه کي د ده رول.

د نوي لوزنامې (انجیل) له ټولو اووه ویشت کتابونو څخه څوارلس د پال لیکني ګڼل کېږي. د ځینو پوهانو لا دا اند دئ چي یوازي څلور- پنځو نورو لیکلي او نور ټول ده لیکلي دي. خو د نوي لوزنامې په لیکوالانو کي د پال رول تر نورو ټولو ډېر د پام وړ دئ.

پر مسیحي الهیاتو باندي د پال اغېزې بې اندازې ډېري دي. ځیني د پام وړ نظریې يې په دې ډول دي:

عیسی مسیح یوازي د يو بشر په توګه د مځکي پر مخ پیغمبر نه و، بلکي د هغه ذات پخپله يو الهام و. هغه زموږ د ګناهونو د بخښل کېدني په خاطر خپل ځان ځار کړ. هغه زموږ خلاصون شونی کړ. د انسان خلاصون یوازي د انجیل له احکامو سره په هوکړه کي نه دئ شونی. هو! پر عیسی (علیه السلام) باندي په ایمان راوړلو سره دا کار شونی کېږي. که کوم څوک پر عیسی مسیح (علیه السلام) باندي ایمان راوړي، نو د هغه ګناهونه پخپله پرېوتل کېږي. پال د اصلي ګناه نظریه هم وضع کړه.

دا چي یوازي د ځانګړو احکامو مراعتول د خلاصون تضمین نه سي کېدلای، نو پال پر دې خبره ټینګار کاوه، چي د عیسائیت منونکي خلک په دې مکلف نه دي چي د

صیهوني* الهامي خبرو پابندي وکړي او یا دي ځان د موسی علیه السلام له شریعت سره برابر کړي، ان دا چي نوموړي بپتیزم** ته هم د دوهمي درجې خبرې په سترګه کتل. پر دې خبره باندي لومړنیو عیسائي لاربنودانو له پال سره کلک مخالفت وکړ. که د نوموړي نظریې دود سوي وای نو بیا دا خبره ناشونې وه، چي عیسائیت دي په دونه تېزۍ سره د روم په ټوله امپراطورۍ کي سرایت کړی وای.

پال تر پایه واده ونه کړ او نه یې هم کله له کومي ښځي سره جنسي اړیکي ودرلودلې. د جنسي اړیکو او ښځي په اړه د نوموړو نظریو، دا چي په مقدسو پاڼو (انجیل) کي یې ځای نیولی و. په راوروسته وختونو کي ژور اغېز ښکاره کړ. پر دې موضوع باندي د ده یوه مشهوره خبره داسي ده:

"زه بې واده خلکو او کونډو ته دا توصیه کوم، چي د دوی لپاره همدا بهتره ده، چي زما غوندي ژوند وکړي. خو که دوی په دې ډول ژوند نه سي کولای، نو بیا دي واده وکړي چي په دې اور کي تر سوځېدلو دا ښه دئ چي واده یې وسي".

د ښځي د مقام په اړه: پال نظریې ډېري ځرګندي دي. "ښځه باید د خپل ټول محکومیت سره سره په پټه خوله د ژوند درس ولولي. زه ښځي ته د زده کړي ورکولو او پر سړي باندي د خپلو واکونو د بېځایه کارولو اجازه په هیڅ توګه نه ورکوم، بلکي باید تل پټه خوله و اوسي ځکه آدم علیه السلام تر حوا مخکي پیدا سوی دی". ( Timothy ۱ ۲:۱۱-۱۳). همدې ته ورته نظریات له یو ځه حرفي زیاتوني سره په کورنتینز (۹-۷:۱۱) کي بیان سوي دي. د پال دا نظریې د هغه د ډېرو همعصرو له نظریو ځخه مختلفي نه وې خو دا خبره باید په پام کي ولرو. چي ځپله د عیسی علیه السلام له خولې ځخه د یوې داسي خبري ثبوت نه لرو.

د یوه صیهوني (یهودي) مسلک ځخه د نړۍ په یوه لوی مذهب باندي د عیسائیت په بدلېدلو کي د پال رول تر ټولو ډېر مهم دئ. د عیسی علیه السلام د ذات الهامي والی او پر هغه باندي یوازي او یوازي د عقیدې په مټ د باور ټینګولو په اړه د ده نظریې تر نن ورځي د عیسائیت بنسټ جوړوي. په راوروسته کي د مسیحي الهیاتو ټول متفکرین، چي پکښي آګستاین، لوتر او کالوین راځي، د ده د لیکنو تر سخت اغېز لاندي وو. په دې کي شک نسته چي د پال نظریې دونه ډېري اغېزناکي وې چي ځینو پوهانو خو ان دا وویل چي د عیسی علیه السلام پر ځای باید همدا پال د عیسائیت د بنسټګر په توګه وپېژنو. دا نظر د خاصي سخت درېځۍ ښکارندوی دئ. که چیري د پال نظریات د عیسی علیه السلام په پرتله لږ پایښت لرونکي هم وي. د دې سره سره د کوم بل عیسوي یوه په پرتله ډېر ژور وو.

**۷ - تسای لون (۱۰۵م شاوخوا):**

د کاغذ د اختراع کوونکي تسای لون له نامه سره به غالباً ډېر لوستونکي آشنا نه وي. د هغه د اختراع ګټورتیا ته په کتلو دا خبره هیښوونکې ده، چي یو دونه اغېزناک کس هېر کړل سوی دئ. په نوو پوهنغونډونو (دایرة المعارفونو) کي پر تسای لون باندي یوه

* په دې ځای کي یې موخه عمومي یهودي مذهب د انه د صیهونیزم ننني نړیواله سیاسي اصطلاح.
** بپتزم (بپتسمه) (په اوبو کي غوټه کېدنه) د عیسوي مذهب د خپلو لو مقدماتي پړاو.

کوچنی لیکنه هم نه ده سوې. د تاریخ په دودیزو کتابونو کې د ده د نوم مونډل ستونزمن کار دئ. د کاغذ د دونه ګټورتوب په نظر کې نیولو سره د تسای لون په حق کې دونه لږه پاملرنه سرې ته دا شک ورپیدا کوي، چې ایا هغه به رشتیا هم یو حقیقي سړی و؟ که خبره په ځیر سره وڅېړو نو راته څرګنده به سي چې هغه رشتیا هم یو حقیقي سړی و او د چین په دربار کې یې دنده درلوده. نوموړي د ۱۰۵م په شاوخوا کې (هوتي) پاچا ته د کاغذ نمونې وړاندې کړې. د هان د کورنۍ په رسمي تاریخي اسنادو کې د تسای لون له خوا د کاغذ د اخترا کېدلو کیسه بیان سوې ده، چې ډېره واضحه ده او پکښې سړي ته د کومې جادو او یا افسانوي خبرې هیڅ ګومان نه پیدا کېږي. چینایانو تل د کاغذ د اختراع ویاړ د تسای لون له نامه سره تړلی دئ او دا نوم په چینایانو کې ډېر عام دئ. د تسای لون د ژوند په اړه ډېر معلومات نسته. د چین د تاریخي اسنادو څخه څرګندېږي چې هغه مخنث (نربنځکی) و او دا هم څرګندېږي چې پاچا د تسای لون له اختراع څخه ډېر خوښ و او د هغه د مقام په لوړولو یې ورته د (اشراف) رتبه ورکړه او په شتمنیو یې ونازاوه. وروسته نوموړی د دربار په توطیو کې ککړ سو، چې په پایله کې یې ورتړل سو. د چین په همدې اسنادو کې دا خبره هم لیکل سوې ده، چې هغه د خپل جرم د سزا په توګه ولامبل. ښه کالي یې واغوستل او زهر یې وڅښل.

په دوهمه زېږدیزه پېړۍ کې په چین کې د کاغذ کارېدنه عامه سوه او تر راوروسته څو پېړیو چین د کاغذ په جوړولو او د آسیا بېلابېلو سیمو ته د هغه په صادرولو بوخت سوی و. دوی تر ډېره وخته د کاغذ جوړولو طریقه پټه ساتلې وه. په ۷۵۱ م کې یو شمېر کاغذ جوړوونکي د عربو په لاس اسیران سول، چې د دې څخه لږ وروسته په سمرقند او بغداد کې هم د کاغذ جوړېدل پیل سول. د کاغذ جوړولو هنر کرار کرار په ټوله عربي نړۍ کې خپور سو. په دوولسمه زېږدیزه پېړۍ کې اروپایي توکموئو له عربو څخه دا هنر زده کړ. د کاغذ کارېدنه هم کرار کرار ډېره سوه. هغه مهال چې ګټن برګ چاپخونه (مطبعه) اخترا کړه نو په اروپا کې د لیکنې د بنسټیز توکي په توګه کاغذ د چرم ځای ونیاوه.

نن کاغذ دونه عام دئ، چې موږ یې د نه شتون په اړه فکر لا هم نه سو کولای او داسي قیاسول لا راته ستونزمن دي، چې که کاغذ نه وای، نو د نړۍ حالت به څنګه وای؟ په چین کې تر تسای لون مخکې ډېر کتابونه د بانس پر لرګي لیکل کېدل. څرګنده ده چې داسي کتابونه ډېر درانه او بې سلیقې وو. ځیني کتابونه به پر وربښمي ټوکر هم لیکل کېدل خو دا کار د ګرانوالي په خاطر ډېر عمومیت نه درلود. په لوېدیځ کې د کاغذ تر کارېدنې مخکې کتابونه پر چرم او یا پر نازکه چمړه لیکل کېدل چې په ځانګړي ډول به د پسه او یا ګیلګي له پوست څخه جوړېدل. د دې ځای د یونانیانو، رومیانو او مصریانو منل سوي کاغذ (پیپرس) ونیاوه، چې دغه چرمي او یا د پیپرس کاغذ دواړه نه یوازې دا چې په پراخه کچه تر لاسه کېدای نه سوای بلکې جوړولو یې هم په لږ خرڅ شونتیا نه درلوده.

نن کتابونه او د لیکلو نور کاغذ ډېر ارزانه او په لویه کچه په آسانۍ سره جوړېږي چې تر ډېره د کاغذ د شته والي له برکته دي. دا رښتیا ده چې که مطبعه نه وای نو کاغذ به دونه ارزښت نه درلودای خو دا هم باید ومنو چې که د چاپ لپاره دونه ارزانه او په لویه کچه کاغذ شتون نه درلودای، نو مطبعو به هم

خپل اوسنی بازار نه درلوداې. اوس خبره دا ده چې په تسای لون او ګټن برګ کې کوم یوه ته لوړه درجه ورکول سي؟ که څه هم زه په دې اند یم چې دواړه په یوه کچه مهم دي خو ما د تسای لون یادونه لومړی وکړه چې څو لاملونه یې په لاندې ډول دي:

(۱) کاغذ د لیکنې تر څنګ په نورو برخو کې هم کارېږي. دا یو هیښوونکی هر اړخیز شی دئ. د جوړېدونکي کاغذ لوی مقدار د چاپ تر څنګ د نورو موخو لپاره هم کارېږي.

(۲) تسای لون تر ګټن برګ لوړوالی لري ځکه که کاغذ نه وای رامنځ ته سوی نو کېدای سي ګټن برګ به مطبعه هم نه وای اختراع کړې.

(۳) که په دواړو کې ایله یو شی هم اختراع کېدای، نو زما په اند (تر ګټن برګ ډېر وړاندې) د خوځنده چاپخونې او چرمې کاغذ په پرتله به د سانچو د چاپ او کاغذ له لارې هم ډېر کتابونه چمتو سوي وای. آیا دا به مناسبه وي چې تسای لون او ګټن برګ په لس تر ټولو اغېزناکو کسانو کې شمار کو؟ د کاغذ او مطبعې په څېر اختراعاتو د کټورتوب د ټولیز درک لپاره د دوی سره تړلې د چین او لوېدیځ فرهنګي پرمختګ په پام کې درلودل اړینه خبره ده. تر دوهمې زېږدیزې پېړۍ مخکې چینایي فرهنګ د اروپایي فرهنګ په پرتله لږ پرمختللی و. د راوروسته پېړۍ په ترڅ کې چین د اروپا په پرتله څو ګونی ګړندی پرمختګ درلود. د اوو او یا اتو پېړیو په ترڅ کې چینایي فرهنګ له بېلابېلو اړخونو څخه د نړۍ د تر ټولو پرمختللي فرهنګ په توګه راڅرګند سو. له پنځلسمې پېړۍ وروسته لوېدیځې اروپا تر چین وړاندې والی وموند. د دې بدلونونو د لامل په اړه بېلابېل نظریات ورکول سوي دي، خو په دوی کې ډېرو یې دغه اړخ هېر کړی دئ، چې زما په اند تر ټولو ساده او ښکاره دئ. دا سمه ده چې کرهڼې او د لیکلو هنر تر چین وړاندې په منځني ختیځ کې پرمختګ موندلی و. ایا یوازې له همدې حقیقت څخه دا نه څرګندېږي چې چینایي فرهنګ ولې په یوازې سر تر لوېدیځ پاته و. زما په اند تر تسای لون وړاندې په چین کې د لیکنې لپاره کوم ځانګړي کاغذ شتون نه درلود. په لوېدیځه نړۍ کې پیپرس شتون درلود. که څه هم دې کاغذ خپلې نیمګړتیاوې درلودې خو د پیپرس ډېرو د بانس او یا د لرګي تر کتابونو ډېر ښه والی درلودی. د لیکنې لپاره د کوم په زړه پورې توکي نه شتون د چینایي فرهنګ د پرمختګ په لاره کې یو لوی خنډ و. د دې لپاره چې یو چینایي لیکوال خپلې لیکنې بل ځای ته یوسي. نو د ګاډۍ اړتیا ورته پېښېده. چې تن ورځ یوازې په یوه او یا څو کتابونو کې ځای پر ځای کېدای سي. باید فکر وکړو چې په داسې حالاتو کې به د دولت د چارو سمبالښت څونه ستونزمن کار وي. د تسای لون له خوا د کاغذ اختراع حالات یو مخیزه واړول. د لیکلو لپاره د مناسب کاغذ د شته والي په برکت د چین د فرهنګي پرمختګ مزل تر پخوا ګړندی سو، چې ایله په څو پېړیو کې تر لوېدیځ وړاندې سو. په لوېدیځ کې سیاسي اړودوړ هم خپل رول لاره خو له اصلي کیسې سره یې هیڅ تړاو نه ؤ. په څلورمه زېږدیزه پېړۍ کې چین تر لوېدیځ ډېر د کورنۍ پاشلتیا سره مخامخ و، خو له دې سره سره یې په فرهنګي ډګر کې په چټکۍ سره مزل کاوه. په راتلونکو پېړیو کې په داسې حال کې چې په اروپا کې د پرمختګ مزل په پرتله ایز ډول کرار و. چینایانو د قطب نما (لوری په ښنه

کوونکې آله)، باروتو او د سانچو د مطبعې غوندې اختراعاتو بوخت کړي وو. دا چې کاغذ د چرم په پرتله ارزانه او په زیاته اندازه د ترلاسه کېدلو وړ و، نو کیسې یو مخ بل لوري ونیاوه.

د کاغذ د کارېدني له پیل څخه وروسته لوېدیځو توکمونو د چین په وړاندې خپل حالت سم کړ او فرهنګي تشه یې ډکه کړه. د مارکوپولو له یادابنتونو څخه د دې خبرې اثبات کېږي. چې په دیارلسمه پېړۍ کې هم چین د لوېدیځ په نسبت ډېر هوسا ژوند لاره. نو بیا څنګه چین د لوېدیځ په پرتله شاته پاته سو؟ د دې خبرې لپاره ډېر پېچلي تمدني (د تمدن د ودې اړوند) لاملونه وړاندې کړل سوي دي خو کېدای سي تخنیکي پرمختګ یې تر ټولو ساده لامل وي. په پنځلسمه پېړۍ کې په اروپا کې یوه ځیرک سړي ګتن برګ په لویه کچه د کتابونو د خپراوي لاره چاره اختراع کړه. له دې وروسته د اروپا فرهنګي مزل ګړندی سو. چین هیڅ کوم ګتن برګ نه درلود او یوازې د سانچو تر مطبعې پاته سو. نو په همدې حساب یې پرمختګ هم پر کراره و سو.

که پورتنۍ ښنه ومنو نو دې پایلې ته رسیږو، چې تسای لون او جوهن ګتن برګ د بشر د تاریخ دوه ډېر مهم کسان وو. د تسای لون رتبه تر نورو اختراع کوونکو په څو لاملونو لوړه ده. ډېري اختراعګاني د خپل وخت د اړتیاوو پایله وي چې که یې اختراع کوونکی زېږېدلی هم نه وای، بیا به هم رامنځته کېدې. خو د کاغذ په برخه کې خبره بل ډول ده. په اروپا کې د کاغذ کارېدنه تر تسای لون زر کاله وروسته پیل سوه. هغه هم په دې ډول چې عربو له دې اختراع سره آشنا کړل. همدا لامل دئ، چې که څه هم چینایان له کاغذ سره اشنا وو خو نورو آسیایي توکمونو دا راز و نه موندلای سوای. څرګنده ده چې د دې ډول کاغذ د جوړولو طریقه ډېره ګرانه وه. دا اختراع تر ډېره ځایه د کوم پرمختللي تمدن لاسته راوړنه نه وه، بلکي د دې لپاره د یوه خدای ورکړي وړتیا لرونکي کس شتون اړین و. تسای لون همداسي یو څوک و. د نوموړي د کاغذ جوړولو طریقه پر همداسي هر اړخیز بنسټ باندي ولاړه وه، چې د تل لپاره د کارېدني وياړ لري. همدا څو لاملونه دي چې پر بنسټ یې تسای لون او ګتن برګ د دې کتاب د پیل په لسو کسانو کي راوستل په داسي حال کي مناسب بولم، چې د تسای لون یادونه باید لومړی وسي.

نور بیا ...

**احمدصمیم**

## آذان

**په آذان کي وایي، چې (الله اکبر)، یعني الله ﷻ لوی دئ، یعني پاچا کوچنی دئ، حکومت کوچنی دئ. مځکه کوچنۍ ده، آسمان کوچنی دئ، کاینایت کوچني دي، مګر الله لوی دئ، حکم یې لوی دئ.**

**د الله ﷻ د حکم پر وخت به سړی د دنیا هر کار شا ته غورځوي او د الله ﷻ لور ته د الله ﷻ کور ته به منډي وهي.**

**د آذان سره به هر مسلمان هغه کلمات د مؤذن سره تکراروي.**

**هوکې! آذان د مسلمان ملت د اصولو خلاصه ده، چې هر وار موږ ته یوه عظیمه برنامه او مسئولیت راپیادوي او و یوه واحد هدف ته مو متعهد کوي.**

**بلې! آذان د مسلمانانو ملي سرود دئ. د آذان اهمیت یوازي د مسلمان په زړه کي ځای لري، نه د بل چا...**

اروابناد اغا محمد کرزی

# پرې مې پرده چې ویښ سم

ګراني موري! د بیدیدو وخت نه دئ، ما ته تر ابده للو مه وایه، پرې مې پرده چې ویښ سم او د خپل ژوندانه چارې سمبالې او نیمګړتیاوې بشپړې کړم. د خوب او زړو انسانانو وخت تېر سو، ځکه چې زه اوس لوی سوی او زما فکري قواوې خپلې دغه مرتبې طی کړې دي. بس ده ډېر دې پخپلو مزخرفو نکلو وغولولم او زما د جام جم په شان ضمیر دې راملوث او مکدر کی، نو په لوی لاس مې مه زنګوه پرې مې پرده چې ویښ سم.



هغه وخت چې زه کوچنی او قدرت زما د خیر و شر ټول مقدرات ستا په لاس کې درکړې وه، نو که نن ورځ زه له علم څخه بې خبره او تر سیالانو پاته یم دا ګرده مسئولیتونه تا ته رجوع کوي، ځکه چې ستا غېږ زما لومړنی دبستان او ته زما اولینه مربي او معلمه یې. هو! یوازې ته یې چې زما د ژوندون سرنوشت تعینولای او د نېکمرغۍ او شقاوت لارې رانبوولای سې، نو په لوی لاس مې مه زنګوه پرې مې پرده چې ویښ سم.



ما ته د خپلو تېرو نیکه ګانو د کارنامو کیسې مه کوه او د دوی تر خاورو لاندې برم او عظمت مه بیانوه. ما پخپلو اوسنیو نواقصو او معایبو پوه کړه او د شلمې پېړۍ د مقتضیاتو سره مې سم وروزه. ځکه زه د هغه دانشمند په قول عقیده لرم، چې وایي: "هغه مور چې په یوه لاس زانګو زنګوي په بل لاس نړۍ ته تکان ورکوي". نو ته ما په لوی لاس مه زنګوه پرې مې پرده چې ویښ سم.

دا ټول ستا د موهومو افسانو نتیجه ده، چې زه نن ورځ ضعیف، سست اراده او د حقایقو نه بېخبر لوېدلی یم، د کوچنیوالي څخه دې زما زړه په خیالي شرموښانو راایستلی او زه دې د هرې پېښې او حقیقت په مخ کې بر جرئته کړی یم، اوس پوه سوم، چې تر محسوساتو پورته یوه بله نړۍ سته، نو ته زما حواس مه را مختلوه، پرې مې پرده چې له درانه خوبه ویښ سم.



دغه ټوله ستا د روزنې سوء اثر دئ، چې زه نن ورځ دننه پخپل کور کې د خپلو ګرانو ورونو سره چې زما هډوماغزه دې بې اتفاقه او یو تر بله ځانونه بېګانه بولو. که تا رښتیا پر ما زړه سوی او

ډلېسوزي درلودای نو زه به ډېرې ډېرغسي په نفاق ته اخته کولای او اوس به مورږ د اتفاق په برکت ډېر شیان درلودای، ځکه اوس پوه سوو، چې په انفرادي صورت ژوندون محال بلکې غیر ممکن دئ، او دا ما ته برېښېدلې ده، چې څو په یوه کورني او جمعیت کې وحدت نظر موجود نه وي د هغو ژوندون هیڅکله بشپړتیا نه سي موندلای، بس ده ډېر دې وغولولم، اوس نو ما خپل سر او خپل ژوند ته پرېږده.



ستا ولې یوازې ملحوظ دا دئ، چې زه تا ته چوپړ او خدمت وکم او یوازې ستا رشتین خدمتګار او وفاشعار زوی وبلل سم؟ ته ما پرېږده چې خپلو ټولو ورونو او کشرانو ته ګټور او مفید ثابت سم، دوی د اوسني ژوند په مفهوم او مزایاوو پوه، نواقص او مایحتاج یې ور تأمین کړم، ځکه دوی هم پر مورږ حقونه لري او د نوي ژوندون آرزوګاني کوي. که ستا همدغه رنګه د خوب ترانې وي، خدای خبر چې زه به له دې ژوره خوبه څخه راویښ سم.



که ته په لوی سر کې پوه سوې وای چې زامن هیڅ وخت د مور بې خیري له خاونده نه غواړي او تل دا هیله او مینه لري چې د خپلي مور د استراحت اسباب او وسایل راغونډ او اماده کړي، کاشکې ته پوه سوې وای چې د زامنو د مېړانې همت او د شهرت ژوندون د مور د تفاخر او مباهاتو موجب ګرځي. پرې مې ږده خپل سر ته چې نوی ژوندون وکم او تا ته هم د نوي ژوندون اسباب تهیه کړم.



دا اټومیک او رڼا عصر د قانون او مساوات اقتضا لري او هر هغه شی چې تر صحیح انتظام لاندې نه وي ژر دئ چې ویجاړ او نامراده به سي، نو زه هم غواړم چې خپلې ټولې چارې سمې ترتیب او تر قانون لاندې یې راولم او د هغه په اساس د معنی او وحدت ژوندون وکم. دا هم په یاد لره چې زما خبرې د ځان پر هتک حرمت او بې عزتی حمل نه کړې. ولې چې زه ستا په حقوقو او احترام ډېر ښه پوهېږم لیکن هغه امور چې ما د نېستی، و کندې ته اچوي ستا د ناپوهی او بې فکری په سبب د دې فرقاني نص په مدلول سره: "و ان جاهداک علی ان ..." منلای نه سم، نو بس ته ما ته د خوب بدلې مه لوله، پرې مې ږده چې ویښ سم.



د خدای لپاره کډې بارېږي او د ساربانانو ږوږ په فضا کې ازانګه اچولې ده. کاروان ولاړی، منازل یې طی کړل او نژدې دئ چې د جرس ږغ هم وانه ورېدل سي. که ته هم رشتیا د نهضت مفکوره لرې پرې مې ږده چې خپل بیده ورونه د غفلت له درانه خوبه راویښ کړم، دوی ته د ساربانانو ږغ او د کاروان ژر پر مختګ ور ووینم او دا ورته ووایم چې خوب او له کاروانه پاتېده ابدي فنا او د مرګ حکم لري. که مورږ حرکت او رفتار وکی د سوو کالو پاته لار به طی او د مقصود شهی به په غېږ کې ونیسو او که بالعکس دا ستا سسته کډه او د خوب للو وي خدای خبر چې مورږ به د کاروان تعقیب وکړو او د دوی په اثر به روان سو، خوب مرګ او ویښتوب ژوند دئ، نو ما پرېږده چې ویښ سم او د خپل ژوندون پاشانې چارې سمبالې او نوی ژوند وکړم[1].





---

[1] طلوع افغان، ۱۳۲۷ ش، ۵۷ مه ګڼه، دوهم مخ.

استاد بېنوا:

# چا ته په سپکه سترګه مه ګوره

د وینو رنګ یو دئ، څه فرق کوي که ځیني عارضي فرقونه تر منځ موجود وي؟
دا عارضي فرقونه د وینې رنګ او د انسان طبیعي جوهر بدلولای نه سي.

بډایي او غربت، لوړوالی او ټیټوالی، تنګسه او استراحت پر انسانانو راځي او ځي، خو حقیقي انسان هغه دئ چي نه په بډایي، لوړوالي او استراحت دومره مغرور سي چي خپل ځان ورک کړي او نه باید په غربت، ټیټوالي او تنګسه کي دومره کمزوری سي چي خپل ځان بایلي او د ژوندون د مجادلې په ډګر کي وارخطا او ژړغونی ودرېږي.

که ته ولاړ یې د دې معنا نو دا نه ده، چي بل تر پښو لاندي کړه، بلکي ښه تعبیر به یې دا وي چي یو بل لوېدلی تر لاس ونیسې او پر پښو یې ودروې ...

ستا لوړوالی په دې کي نه دئ، چي نورو ته په ټیټ نظر وګورې، او نه ستا دروندوالی په دې زیاتېږي چي بل چا ته په سپکه سترګه وګورې.

که ته غریب نه یې او د مځکو او باغو خاوند یې نو دا ستا له پاره ښه خبره ده څو غریبان او بې مځکي خلک دي هم له نظره ونه لوېږي.

دا غریبان د هیواد په ودانې کي لوی لاس لري، دوی که څه هم پخپله یوه جونګړه هم نه لري، خو ډېر کورونه یې ودان کړي دي.

سره د دې چي د ځان له پاره یوه ونه هم نه لري، خو بیا هم ډېر باغونه د دوی په زیار او زحمت سمسور دي، که یې پخپله یوه لوښت ودانه مځکه هم نسته خو نورو ته یې ډېري شاړي مځکي وداني کړېدي.

د دوی دا زیار د قدر وړ دئ او د لاسو تڼاکي یې مرغلري دي، نو مه ګوره ختګر، کارګر او بزګر ته په سپکه سترګه مه ګوره.

هر مشروع کسب مبارک دئ، او هر کاسب ته د خدای دوست ویل سوي دي، نو مه ګوره هغه کاسب ته چي له خپله زحمته ځان ته حلاله روزي پیدا کوي، په سپکه سترګه مه ګوره.

او بالآخره که د ځان حقیقي دروندوالی غوارې هیچا ته په سپکه سترګه مه ګوره[1].

---

[1] پښتون ږغ مجله، ۴ ګڼه، د پښتې دوهم مخ، ۱۳۳۷، د ارواښاد بېنوا نوموړی نثر د هغه په مستعار نامه (سپین تمان) خپور سوی دئ.

